

# منبع الجهاد

علمي ، جهادي ، سياسي خپرونه

که په ولس او کليوالو سيمو هوايي بمباري او راکتي حملې دوام و مومي موږ بې تفاوته نشو پاتې کېداى.

الحاج مولوي جلال الدين « حقاني »

دخوست په ښار کې له امنيتي ساتونکو پرته دوسلې په گرځولو بنديز لگول شوى او دا کار په ډيره ښه توگه عملي شوى دى

دخوست والي

الحاج عبدالقيوم خان





موږ داکوښښ کړى چې ټول ذهنيتونه په يوه اداري چوکاټ کې راشي او يوه داسې شورا جوړه شي چې دمنلو او پريکړو دعملي کولو قابليت ولري.

دخوست ولايت مرستيال

« ارمان »




دجامعي مشر دجامعي خادم دى، په اسلام کې حکومت او مشري دباداري په معني نه بلکه دخدمت په معني ده.

مولانا ذاكري

ديوى تاريخي روغې جوړې تاريخي سندونه

بسم الله الرحمن الرحيم

## الهي لارښوونی

لوی خدای(ج) فرمايي :

ای مومنانو ! له زغم نه کارواخلی ،دباطل پرستانو په مقابله کی میړانه وښیی دحق د خدمت لپاره ملاتینګه وتړئ اوله الله (ج) نه ویریدونکي اوسی ، ښايي چی بری ومومی

(آل عمران ،۲۰۰ ایت)



# منبع الجهاد

علمي، جهادي، سیاسي خپرونه

احمد شاه ((وحدت))
Ahmad Shah (Vahdat)
A. K. P. O.


مؤسس: الحاج مولاناجلال الدین «حقاني»
دتأسیس کال: ۱۳٦۸ هـ ش،۱٤۰۹ هـ ق

پنځم کال: لومړی، او دوهمه ګڼه -۱۳۷۲ هـ ش ، عقرب - قوس -۱۹۹۳ م - نومبر


دهیئت تحریر تر نظر لاندي


مکاتباتي پته

پوست بکس نمبر (۱۰۳۳) یونیورستي
ټاون - پیښور
دتلیفون نمبر( ۸۱۰۴۸۲ )پیښور

بانکي پته

حبیب بانك، کنټ برانچ صدر رود خانګه
دحساب نمبر: ۲۰۵۵۹
پیښور پاکستان


په دې ګڼه کې

شمیر عنوان مخ

**الحاج مولوی جلال الدین حقانی دوروستیو هوایی بمباریو او راکټي حملو دغندنې او همدارنګه دسروبی، تګاب او کابل له اوسیدونکو سره دهمدردۍ په پیغام کې:**

# که په ولسي خلکو او کليوالو سيمو هوايي بمباری او راکټي حملې دوام پیداکړي موږ بې تفاوته نشو پاتې کیدی

بسم الله الرحمن الرحيم

دافغانستان مجاهد او قهرمان ملت چې له روسي يرغلګرو پوځونو سره يې دجهاد په جريان کې دجګړو او هجرت کومې ستونزې زغملي او پدې لار کې يې څومره قرباني ورکړې په يقين سره ويلی شو چې دبشري تاريخ په حافظه کې دداسې دردوونکو پيښو سارى او ددغسې قهرمان ولس دصبر او زغم مثال نه ليدل کيږي.

په کار خو داوه چې دملت پر ټپونو دملهم پټۍ ايښودل شوې وای او ددغو دردونو درمل شوی وای خوله بده بخته چې دتيرو (۱۸) مياشتو داقتدار خپل منځي جګړو ملت لدې څخه زياتو مصيبتونو او تکليفونو سره مخامخ کړ ، داوبو او بريښنا قطع کيدل،دلارو بندول او دسونګ او خوراکي موادو له قحطي بې امنۍ او لوټمار سربيره په هوايي بمباريو او راکټي حملو کې له ورانکونکي او مرګوني سرنوشت سره مخامخ شو. موږ دافغانستان دعلماوو، قوماندانانو او هغو ټولو اړخونو په نمايندګۍ چې په جنګ کې ملوث ندي له دوارو متخاصمو ډلو څخه په کلکه غوښتنه کوو چې په ولسي خلکو او کليوالو سيمو له هوايي بمبارۍ او راکټي حملو څخه ډډه وکړي، دبريښنا له قطع کولو، داوبو له بندولو او د عام المنفعه پلونو او فابريکو له بمبارۍ او راکټي حملو څخه ځانونه وساتي. موږ پداسې حال کې چې له خپل مجاهد او مظلوم ولس سره دهوايي بمبار او راکټي حملو له اړخه درسيدلي زيان په غم او درد کې ځانونه شريك بولود الله تعالی له در بار نه ورته داجر عظيم غوښتنه کوو او دا په ډاګه اعلانوو چې که بياهم په ولسي خلکو او کليوالو سيمو او عام المنفعه تأسيساتو هوايي بمباري او راکټي حملې تر سره شي موږ بې تفاوته نشو پاتې کيدی ، موږ يو ځل بيا په تکرار او تاکيد سره ددې ټکي يادونه کوو چې په کليوالو سيمو او ولسي خلکو بمباری او راکټي بريدونه سملاسي بند کړی شي، او ولس له بريښنا ، اوبو او د ژوند له لومړنيو ضرورتونو څخه محروم ونه ګرځوي، که چيرې بياهم دغه ناوړه عمل تکرار شي موږ بې تفاوته نشو پاتې کيدی، بيا به مجبور ؤ چې په لازم اقدام لاس پورې کړو چې پدې صورت کې به دعواقبو مسووليت دمتخاصمو ډلو په غاړه وي.

والسلام علی من التبع الهدی

الحاج مولوی جلال الدين حقانی

# واقعي




# په واقعیتونو متکي حل

دجمهور رئیس او صدر اعظم دپوځی ځواکونو ترمنځ یوځل بیا په تګاب کی دیوی خونړۍ جګړی او زور-ازمایی لوبه توده په توده کی روانه ده - دخبرونو ترمخ داخوږم ځل دی چی متخاصم ځواکونه تګاب نیسی او بیرته په شاتګ ته مجبوریږی، لدی ځخه معلومیږی چی دواړه ځواکونه په نظامی لحاظ یوبل ته دآخری شکست ورکولو بشپړ قابلیت نه لری، او څرګندیږی چی په پوځی ډګر کی اخری پریکړه ( فتحه او شکست) د روان جنګی وضعیت له منفی لیری دی.

لوستونکی او هیواد وال دابنه درک کولی شی چی دغه نیول او شاتګ به هر لوری ( افغان ولس) ته په څومره لوړه بیه تمام شوی وی - ځکه دتعرض او دفاع دغه دواړه صورتونه او له هغی ځخه راولاړ ځانی او مالی تاوانونه په حقیقت کی بیاهم افغان ولس زغمی اوبس.

دخپروشویو خبرونو له مخی په دغو جګړو کی دمرګ ژوبلی شمیره دپخوانیو جنګونو په پرتله ځکه زیاته ده چی داسیمه هر لوری دخپلی واکمنی او طاقت مهمه منبع ګنی او داسی بنکاری چی دهر اړخ لپاره دا سیمی دخپل ځواک او طاقت ښودلو او ساتلو اصلی او اساسی موضع ده.

دصدارت او جمهوری ریاست پوستونه دهیواد داقتدار دوه اصلی او اساسی مرکزونه ګنلی شی، پداسی حال کی چی دا دواړه ستر پوستونه دمتخاصمو ډلو په واك کی دی جګړه هم دهمدغو اړخونو په مینځ کی چی داقتدار دغه دواړه مرکزونه یی په لاس کی دی روانه ده.

له همدی ځایه ده چی دجګړی ددغی اور دلا ژبغړانده کیدو لپاره کله قومی ، سمتی او مذهبی تمایلات پاروول کیږی او کله دا ډول نورو تعصباتو ته لمن وهل کیږی خو حقیقت دادی چی دا هرڅه دخپلو منافعو له مخی عنوانیږی او بیا په ډیره ظالمانه توګه تر سودا بازی لاندی نیول کیږی.

حیرانوونکی داچی دوی ددغو جګړو دجواز لپاره دحق په جانب اکټونو او تاویلاتو دوړاندی کولو په ناکامو کوښښونوسره داسی فکر کوی چی ګنی ملت دومره بی حسه او بی خبره ده چی پدی نه پوهیږی چی جنګ دڅه لپاره؟ او پدی کشمکش کی دملت تباهی او دوطن بربادی ولی؟ په بل عبارت پداسی حال کی چی دملت پر مری لګیادی چاړه را کاږي داهڅه کوی چی ملت دخپل قتل په جواز هم قانع کړی.

عجیبه خبره داده چی ظاهراً دجمهور رئیس او صدراعظم ترمنځ ددغو جګړو په منځ منځ کی ددفاع دپخوانی وزیر ښاعلی احمد شاه مسعود نقش هغه تریخ حقیقت دی چی دغو خونړیو جګړو ته بل خطرناك جهت تاکی. پداسی حال کی چی دده له ګوښه کیدو سره باید دده تکلیف نور معلوم شوی وای :

دجلا آباد دترون له مخی ښاغلی

احمد شاه مسعود ددفاع له وزارت ځخه گوښه شوی خو په روان جنگ کی دجگړه مارسیاست ترشا دهغه نقش او قومانده په اساسی توگه دخیله ښکاری، داسی چی جگړه دصدراعظم او ددفاع دپخوانی وزیر دځواکونو ترمنځ وی که داسی وی چی داسی هم ده نو جنگ دبرحال صدر اعظم اوگوښه شوی دفاع وزیر ترمنځ دی چی پدی صورت کی دکابل راډیو دغه تبلیغات چی گڼی حکمتیار داسلامی دولت پر ضد جنگ شروع کړی باید داسی وانگیرل شی چی معزول وزیر دفاع دبرحال حکومت پر خلاف جگړه پیل کړی وی چی پدی صورت کی قضیه روښانه ده چی باید داسی نه وای.

سوال دادی چی پدغو جگړو کی دملت تباهی او راښکیلول هم څه دنیاوی او اخروی مسوولیت لری او ایا ایمان وجدان او تاریخ ته هم دځه کردار په لوبولو څوک قایل دی که څنگه؟

بله حیرانوونکی خبره داده چی هر لوری دا ادعاکوی او داخپل داسی حق بولی لکه چی دتگاب قواله نغده ور سره وی. ښاغلی احمد شاه مسعود داور بند او سولی لپاره دا شرط ایښی چی تگاب ورته پریښودل شی دا داسی خبره ده لکه تگاب چی دچا شخصی ملکیت وی، او یاهم دهیواد سیمی دښاغلی مسعود او ښاغلی حکمتیار ترمنځ تقسیم شوی وی. پداسی حال کی چی تگاب یا دافغانستان نوری سیمی نه خودچا میراث گڼلی شی او نه هم شخصی ملکیت.

بله خبره داچی جنگ که په کابل کی وی او که په ولایاتو کی جنگ دی ؟ بربادی ده او ورانی-او دافغانستان په نوم په دغه جغرافیایی محدوده کی هره سیمه افغانستان دی او دټولو گډ وطن او کور. دتأسف ځای دی چی دمجاهدینو په نوم په دغه (١٨) میاشتنی حاکمیت کی پداسی حال کی چی جمهوری ریاست او صدارت هم ددوی په قول دمطرحو جهادی او تحریکی قوتونو سره دی بیاهم داسی خبرونه خپرېږی چی دهیواد هغه او دغه سیمه له دښمن ځخه ونیول شوه او فتحه شوه-ددښمن دومره پوستی فتحه شوی... مجاهدین شهیدان شول دښمن الوتکی راوغور ځول شوی او... جگړه که دصدر اعظم او جمهور رئیس ترمنځ وی اوکه دنورو اړخونو ترمنځ خو دهوایی بمباری او راکټی حملو په اور کی ولس سوځی او دبیدفاع کلیوالو کورونه ورانیږی اورغورځوونکی او غنچه یی بمونه په ولسی خلکو اچول کیږی. او پدغو بمباریو کی دهغو چا کورونه او هستی خاوری کیږی چی دجمهور رئیس او صدر اعظم یاهغه او دغه هیڅ یوه په مخالفت او پلوی کی قرار نلری. دسروبی وحشیانه بمباری نه خود حکمتیار په پوځی مرکزونو شوی او نه هم دهغه په پوځی قوتونو بلکی نیغ په نیغه دسروبی بازار او شاو خوا کلی او کورونو بمباری شوی او له لمونځ کوونکو ځخه په ډکو جوماتونو باندی بمونه غورځول شوی دی، له روسانو او کمونیستانو سره په تیره (١٤) کلنه جگړه کی دسروبی بازار او نژدی کلی دا ډول ندی بمباری شوی خو اوس دادی هغه بازار اوکلي په اصطلاح د مجاهدینو دحاکمیت په دوران کی بمبارشول، وران شول او وسوځیدل.

دلته داحقیقت بیخی جوت مخی ته کیږی چی دکمونستانو فعالیت ته جگړی څومره زمینه مساعده کړی ، لدغو اختلافاتو او جنگونو ځخه هغوی نه یواځی داچی دخپل برائت لپاره دگټی اخیستلو په لټه کی دی بلکی کوښښ کوی له د ی لاری هغه وحشتونه ،بمباری او ظلمونه له خلکو هیر کړی چی (١٤) کاله د کمونستانو له خوا پدغه ملت ترسره شویدی .

دغی ټکی ته د اتحاد علمای افغانستان مشر محترم مولانا ذاکری صاحب هم اشاره کړی ویلی یی دی :
« په تگاب او سروبی کی د بمباریو فتنه د روس بچیانو پیښه کړی هغوی غواړی پدی هیواد کی بی امنیتی ، بی باوری او دښمنی تشدید کړی دغو ظالمانو ته چی وویل شی خولی بې راوړه دوی یی سر راوړی . »

په پوځی ساحه کی په تیره هوایی برخه کی د کابل دواکمنی اتکا هغه جنرالان او پرسونل دی چی (١٤) کاله یی دد غه ملت پر ضد د جنگ او وحشت په روحیه سره فعالیت او برخورد کړی . که نه نو د

کوم افغان او مسلمان ایمان او وجدان به د دی اجازه ورکړی چی له خلکو ځخه په ډك بازار او کلیوالو سیمو اوږ غورځوونکوی او غنچه یی بمونه استعمال کړی او د بیگناه او مظلومو هیوادوالو جونګړی او هستی له منځه یوسی .

د جګړی فشار او زیانونه چی څومره عام ولس او خلکو ته متوجه دی دومره متخاصمو ډلو ته نه دی متوجه - څومره زیان چی له دی جګړو ځخه ولس او خلکو ته رسیدلی ، متخاصمو ډلو ته نه دی رسیدلی ، له همدی ځایه ده چی د سولی علمبردار الحاج مولوی جلال الدین حقانی په خپل یوه پیغام کی د بمباریو له امله له ولس سره د همدردی د څرگندولو په ترځ کی اعلان وکړ چی په کلیوالو سیمو او ولسی خلکو هوایی بمباری او راکټی حملی بندی کړی شی ، که دا حملی بندی نشوی دوی بی تفاوته نه شی پاتی کیدی چی په دی صورت کی به د عواقبو مسوولیت د متخاصمو ډلو په غاړه وی . همدارنگه الحاج مولوی جلال الدین حقانی دا هم اعلان کړه چی عام المنفعه تأسیسات اوبه او بریښنا د ولس طبیعی حق دی ، له دی مسلم حق څخه د ولس محرومول ستر ظلم دی چی باید نور تکرار نشی .

په ساړه ژمی کی خونړی جګړی او له دی اړخه د بریښنا، اوبو او سونگ د موادو نشتوالی داسی ښکاری چی له ولس څخه د تیر (۱٤) کلن جهاد غچ اخیستل کیږی

په دی کی د کمونیزم د هغو پاتی شونو نقش څرگند دی چی له همدی ناحیی یی خپل نظامی حضورته لار پرانستی ده .

حقیقت دا دی چی کابل د مجاهدینو په نوم د (۱۸) میاشتنی حاکمیت او جګړو په دوران کی چور شو، لوټ شو ،حتی د یوه بهرنی ژورنالست په قول دوطن په ورانی او بربادی برسیره پدغه وخت کی دافغانانو تاریخ هم وران او لوټ کړی شو خو لدی ټولو سره داقتدار دهوس نشه او تلوسه سره نشوه پدغه موده کی دنظام او حکومت په نوم دګډوډی او انارشیزم حاکمیت دی او دملت دمادی او معنوی شتمنیو دچور تالان لپاره داسی لاری چاری رامنځته شوی چی اوس یی دیوه سیستم بڼه غوره کړیده.

داجریان او خونړی جګړی په مجموع کی دملت پرضد جګړی او دوطن دورانی او بربادی جګړی دی چی نور باید پرینښودل شی چی داوطن همداسی دجګړی ډگر پاتی شی او دملت تشخص او ملی وحدت او هویت پکی ایری ایری شی، ددغو خونړیو جریاناتو دمخنیوی لپاره باید په هغو واقعیتونو فکر وشی او په پام کی ونیول شی چی دربړی دحل په جهت کی مؤثرو واقع کیدی شی که څه هم دچاله ذوق او سیاسی سلیقی سره اړخ نه لګوی او یاهم دیوه اوبل له گوندی او شخصی منافعو سره په ټکر کی واقع کیږی.

حقیقت دادی چی ترڅو دحل داسی لاری چاری او واقعیتونه په پام کی ونه نیول شی او له هغو ځخه داستفادی لاری ونه لټول شی ربړه بیخبوره نشی حل کیدی. موږ دتوافقاتو او حل په نوم ډیر حرکتونه ولیدل چی هیڅ هم تری جوړ نشول ، پدی رابطه ډیری تجربی وشوی خودحل په جهت کی یی څه نتیجه ورنکړه.

ځینی هسی له بعضو نومونو ویره لری او بیځایه ورسره حساسیت څرگندوی. افغانان دخپلو اسلامی اوملی ارزښتونو له مخی کولی شی په یوه معقول او منطقی حل بریالی شی چی دننگرهار دشورا او احمدزیو ترمنځ دسولی جریان او توافق زموږ دخبری ژوندی ثبوت دی.

دافغانستان علما، قوماندانان، قومی مخور، سیاست پوهان او روشنفکران دداسی یوه حل اجزا دی چی ددوی په ټولیدو او پریکړه دامعضله هواریدای شی ځکه خو په کار ده چی موږ واقعیتونه ومنو او ورڅخه استفاده وکړو، له واقعیتونو ویره او یاورسره حساسیت نه یواځی داچی سړی له حقیقت څخه لیری کوی بلکی په داسی ورکو اونامعلومو لارویی بیایی چی بیایی سرابونه هیڅکله په حقیقت نشی بدلیدلی.

په کار ده هغه څه چی ورروسته دمجبوریت له مخی دډیر ستر قیمت په اداکولو ترسره کوو اوسس حقایقو او واقعیتونو ته دتسلیمیدو په روحیه عملی کړو.

وما علینا الاالبلاغ

الحاج مولوي جلال الدين حقاني له منبع الجهاد سره په مرکه کې:

# ملت بايد له تحزب ، قوميت او تفرق نه وحدت ته روابلل شي ترڅو د هر ډول عداوتونو منشأ ختمه کړی شي

جګړې دواړه خواوې دې ته اړ کړي چې له هرچا سره د يوبل پر ضد ائتلاف وکړي

پوښتنه : که په ننګرهار کې د خپلو سوله ايبزو هڅو او فعاليتونو په رابطه لوستونکو ته معلومات ورکړې ډيره مهرباني به مووي .

ځواب : د ننګرهار د شورا او احمدزيو د قام ترمنځ د جګړې ډير خونړي اور لګيدلي ؤ ، ددغه جګړې مخکني اسباب اوعوامل چې هر څه وو او يا داچې څه ډول جګړه پيښه شوه چا د جګړې دغه اور ته د لمن وهلو هڅه وکړه د چا لاس پکې ؤ او لدي لارې يې د خپلو سياسي اغراضود تحقق هڅه کوله ، زه دلته په هغې بحث مناسب نه ګڼم . البته دا ښکاره ده چې ددغه جګړې ظاهري منشأ د حاجي شمالي خان او دهغه د ورور ناصر خان وژل او ددوي د غونډونو ، مرکزونو او شتمنيو لوټول وو ، دې کار داحمدزيوپه قوم ډير بد تاثير وکړ ، که څه هم پدې هکله ډيرې توصيې وشوې خو څه اغيزه يې ونکړه احمدزي پورته شول اودايې عنو انوله چې موږ انتقام نه اخلو بلکې د شمالي خان د شخصي شتمني غونډونو ، مرکزونو او وظيفي غوښتنه يې کوله چې دا ټول بيرته دوی ته وسپارل شي .

د ننګرهار شورا ويل چې د شمالي خان په واسطه زموږ نظم مخکې هم مختل ؤ ، امنيت هم خراب ؤ او نور داسې ډير شکايات موجود ؤ اوس که بو ځل بيا دده هغو خاصو کسانو ته پداسې صورت کې چې روغه نه وي شوې او مړي په ځای پاتې وي پدې صورت کې که دده نفر شورا ته راشي دا به د جنګ او فتنې سبب وګرځي ، همدا رنګه دوي داهم ويل چې دا شورا د تنظيمونو په سطحه جوړه شوې اوس بايد د هغه

په عوض د محاذ له تنظيم نه په
شورا کي بل نفر ونيول شي پدې
شورا کي د قوم په لحاظ کوم
تشکيلات وجود نلري چې د
قوميت له مخې په شورا کي
برخه ورکړي شي .

همدارنگه غونډونه او
مرکزونه هم شخصي ملکيت نه
شي گڼل کيدی دا ټول د
ننگرهار د شورا په اختيار کې
دي داد ننگرهار د شورا او فرقي
مربوط دي او د ننگرهار تر
اداري پوري اړه لري او د کوم
قوم ونډه او حق نشي گرځيدلی
دوي داهم ويل چې پدی
مربوطاتو کي چي هر څوك تا-
کل کيږي هغه بايد د ننگرهار
مربوط وي نه په زاړه رژيم پوري
تړلي خلك وي او نه د بل ولايت.
موږ په ډير غور او تعمق
ددواړو خواوو اظهارات،دلايل او
نقطه نظر واوريد او پدې هکله
مو د خپلو معلو ماتو د
بشپړولو هڅه وکړه ، همدارنگه
موږ په ننگرهار کي د شمالي
خان دوسلي او شتمنيو
معلومات واخيستل او همدارنگه
مو په حصارك - سروبي ، تزين
او ملا عمر کي د منځ ته راغلي
وضعيت او موجوده او پخواني
حالت معلومات تر لاسه کړل موږ
لومړي د اکوښښ وکړ چي لار

> پا تهکونه باید له لارو څخه لیري کړی شي اوله هیچا څخه غیرقانوني محصول وانه خیستل شي

بايد خلاصه شي ځکه په جلال-
آباد کي په سلگونو مسافر د
لاري د بنديدو له امله چي زنانه
، بوډاگان او اطفال پکې شامل
وو له څو ورځو راهيسي بند
پاتي وو چي نه په هوټلونو کي
ځاي ؤ او نه هغوي داسي بل
ځاي پيدا کولی شواى ، په کابل
کي هم نوخونه ډير لوړ تللي ؤ
او د خوراکي موادوقحطي يي
را منځ ته کړي وه او په ټول
هيواد کي يي ناوړه اغيزه کړي
وه ، هماغه ؤ چي لاره خلاصه
شوه نژدي يو مياشت موږ په
دي هلو ځلو تيره کړه تر
ننگرهار او سروبي پوري څو څو
واره ولاړو،له اړوندو اړخونو
سره مو تفصيلي ، خبري وکړي
او د هغوي قناعت مو حاصل
کړ.زموږ د هلو ځلو په نتيجه
کي د ننگرهار شورا توافق وکړ
ويي ويل چي جوړه کيږي بايد
بيخپوره جوړه وشي ځکه خويي
د شمالي خان پر ځاي په شورا
کي د هغه د ورور په شموليت
هم توافق وکړ ، غونډونه او
قطعات به ددوی داسی
کسانوته چي د ننگرهار مربوط
وي د بل تنظيم او نوروو
ولايتونو نه وي او د زاړه رژيم
بقايانه وي ورته سپارل کيږي او
شتمني او لوازم به يي هم ټول
ورته تسليم کوي .

په استثنا د ډاکي د غونډ دا غونډ فعلاً پیر صاحب ته حواله شو - او پیر صاحب به دا غونډ داسي چاته سپاري چي دواړه خواوي پرې قناعت ولري څکه دا غونډ جنرال رحیم وردګ او باچا تأسیس کړې وُ .

په فیصله کي دا هم راغلي چي د لاري په اوږدو کي باید دواړه جانبه هیڅ پا ټکونه وانه چوي غیر قانوني محصول او پیسي له چانه وانه خلي که له دي نه هر طرف سر غړونه وکړه دواړه خواوي به ورته یووي او له سر غړوونکي څخه به هیڅ ډول قومي او تنظیمي ملا تړ نه کوي .

له دواړو خوا وو پنځوس پنځوس لکه کلداري نقدي بر- مته او ضمانتونه واخیستل شول که هر طرف له فیصلي سر غړونه وکړه دا به په طریقه د تعزیر بالمال ددوي جریمه وي چي دسولي هیئت ته به ورغلي وي د مړو په باره کي تر یوه کال بند کیښودل شو چي پدي موده کي به دمړیو پورنه غوښتل کیږي تر څو حالات پدي هکله هم دا ډول سازګارشي چي شوې فیصله عملي بڼه غوره کړې شي دا هم باید ووایم چي هر طرف لدي فیصلي څخه سر غړونه وکړه برمته به یې ځي ، دادی د فیصلي اصلي متن تاسي ته سپارل کیږي چي هغه هم مکمل نشر کړي .

پوښتنه : د خداي په فضل ستاسي د کوښښونو اوغوره تدبیر له امله د ننګرهار شورا او احمدزیو ترمنځ د جګړې د فتني اور مړ شو ، له همدي ځایه له ولس سره دغه هیله ژوند ی شویده چي تاسي یو ځل بیا په

**د ننګرهار شورا او احمدزیو تر منځ د سولي د سر غړونکو څخه به هیڅ ډول قومي اوتنظیمي ملاتړ نه کیږي**

کابل کي د سولي لپاره خپلي هڅي پیل کړي ، آیا تاسي پدي رابطه ولس ته څه ډاډ ورکولي شي .

ځواب : په کابل کي د رباني صاحب او حکمتیار صاحب تر منځ سوله په دوو طریقو باند کیدي شي یوه دا چي ددوي کوم اختلافات دي هغه په ډاګه د ملت په وړاندي کیږي د ملت د هر قشر نه دعلماوو ، قوماندانانو ، روشنفکرانو او مخورو تر نګراني لاندي ددوي اختلافي مسایل شریعت ته حواله کړي شي ، شریعت چي کوم ګرم او پړ کړ هغه به ګرم او پړ ګڼلي شي او که دواړه بې ګرم او پړه وبلل دواړه به ګرم او پړه بلل کیږي او دواړه به دا فیصله مني پدي صورت کي به دواړه لیرې کیږي او یا به یو حاکم اوبل به یې په اطاعت مجبور یږي . د هر یوه په څنګ کي چي کوم غیر مشروع عملونه دي او دوی په هغو تمسک کړی لکه کمونستان یې چي په خپلو څنګونو پوري نیولي دا ټول به د شریعت له مخي حل او عملي کیږي ،

شریعت په حکم وکړي او ملت به یې عملي کړي .
بله خبره داچې یوه ډله د علماوو ، قوماندانانو، روښنفکرانو او مخورو په ملت

> باید د شریعت په رڼا کې دملت د واقعي ممایند ګانو لهخــــوابرداسې قوت رامنځته شي چې دواړه خواوې شریعت ته کینوي او د شریعت د حکم له مخې په ملامت لوري دهغه ملامتي تطبیق کړي

کې وګرځي دا متفرق ملت د تحزب ، قومیت او تفرق نه وحدت ته راوبولي ، منسجم یې کړي بیا دسولې او حکومت لپاره یوه طرحه جوړه کړي چې د عداوتونو منشا ختمه شي ، البته دا به یوه متفق علیه طرحه وي پدې صورت کې به دوي یا دا طرحه مني او یا به له صحنې لیرې کیږي ، خو اول به علماء ، قوماندانان او مخور لومړی څخه دا التزام اخلي چې که شریعت هر یو ګرم او ملامت کړ هغه به پر او ګرم وي ، که دواړه یې ګرم کړل دواړه به ګرم وي او له صحنې څخه به ایسته کیږي خو شرط د ادې چې پالیسي او طرحه باید جوړه شوي وي او یو داسې قوت برابرشي چې دواړه شریعت ته کینوي او په ګرم ، ګرمه تطبیق کړي پدې صورت کې به زه هم د نورو په جمله کې له خدمت څخه دریغ ونکړم او خپل ټول امکانات او علمي شخصي به په کارواچوم .

پوښتنه : ګڼ علما ، سیاست پوهان ، قوماندانان او مخور د دولت قانوني او اسلامي خلاوو او کمزوریو ته ګوته نیسي ، خو تر اوسه پدې رابطه د یوه اتفاقي او پراخ پلان اوطرحې څرګندونه نده شوې ، پدې هکله تاسې د کومې پراخه اتفاقي طرحې څه پروګرام لرئ که څنګه ؟

ځواب : تر اوسه چې علماوو پدې رابطه کوم جدي اقدام ندی کړی وجه یې دا ده چې ځینې تربول نور هم زیات نشي ، که کومه فتوي راوځې او کوم غیر شرعي کارونه چې په حکومت کې دي د هغې د مرتکبینو د حکم فتوې جاري کړي او حکومت څه غور پرې ونکړي د زیاتو وینو تویولو سبب به وګرځي .

دوې غوارې چې له نورو لارو واکمن متوجه شي د تجربې له مخې دې ته پام وکړي د جنګونو له اړخه دې متوجه شي چې تر اوسه یې هیڅ نتیجه نده تري تر لاسه کړی او له دې لارې به اصلاحات راولي او یا به داسې یوه حل ته غاړه کیږدي چې موجوده مشکلات حل کړي شي ، او دې ته ضرورت پیدانشي چې فتوي صادره شي .

اصلا له علماوو او ملت سره دا خبره هیڅ مطرح نه ده چې حکومت او مسوولین یې د کوم تنظیم او کومې سیمې خلک دي ، که د هر تنظیم او هر سمت وي خو چې اسلامي حکومت مستقر شي ، امنیت ټینګ شي د ملت مال او ناموس او حقوق په امن شي .

خو ددې کار لپاره اورد انتظار ندې په کار ، که اصلا حات یې رانه وستل او اسلام یې په بشپړه توګه تطبیق نکړ ، بیا به علته د

علماوو، قوماندانانو او مخورو له
خوا په ګډه اقدام کیږي .
پوښتنه : په هیواد او بهر کې د
یوه مستقر ملي حکومت لپاره
بیلا بیل قوتونه بیلا بیل نظریات
لري ، ددغو نظریاتو او هڅو د
توحید له پاره ستاسي د نقش
یادونه کیږي ، تاسي پدې اړه څه
نظرلوي ؟
ځواب : په افغانستان کې د
اسلامي حکومت د استقرار لپاره
نه خو د ملګرو ملتونو د قوتونو
مدا خله دا مشکل حل کولی او
نه هم د اوول نور پروګرامونه ،
ځکه د افغانستان مجاهد ولس د
داسي یوه سوچه اسلامي حکومت
غوښتونکي دي چې هغه په هیڅ
نوعه د غرب د تقلید څخه بر
خور دارنه وي او نه هم د خارجي
مداخلي په لاس ملوث وي
. بلکې داسي حکومت
غواړي چې د اسلام په
نقشه جوړشوي اوروان وي
ددې یوه طریقه داده چې د
ملت با بصیرته اشخاص له علماوو ،
قوماندانانواومخوروڅخهراټولشي د اکه
په طریقه د انتصاب که
انتخاب خو عام انتخابات
نه ـ ددوي په مشوره او
همکاري یو حکومت جوړ
شي ، بیعت ورسره وشي
او د کار کردګی لپاره
دهمکاري او اطاعت وعده
ورسره وشي په مخالف
یې شرعي حکم وشي دا
دحکومت د جوړیدو. او
استقرار لارده .
پوښتنه : تاسي دځېل
اصولي او مستقل موقف
له مخې تر اوسه د دولت
په اجرآتو او دهغې د
مخالفینو په طرز عمل
دواړو انتقادونه کړي آیا دابه د یوه دریم
قوت درامنځته کیدو په لور پرمختګ نه
وي ؟
ځواب : په اصل کې په افغانستان کې
چې څه ناوړه کارونه او
بې نظمي رواني دي او یا هم په
حکومت کې د کمونستي رژیم بقایاوې
فعالي اوائتلافي شکل لري دې
ټولو ته زه فکر کوم چې
جنګ زمینه مساعده کړې
جنګ دواړه خواوې دي نه
اړ کړي چې له هر چاسره
دیو بل پر ضد ائتلاف وکړي .
ځکه دا جنګونه د اقتدار جنګونه
دي، هره ډله د ځان لپاره مطلق
العنانه واکمني غواړي .
ځکه خو موږ په دواړو خواوو
انتقاد کړی ، د دوي په کړو وړو
اوعمل مو اعتراض کړی ددوي
جګړه مار سیاست او اجرآت مو
غندلي خو دا هیڅکله ددریم
قوت د پر لاسي کولو هڅه او قدم
نلي ، اصلي خبره داده چې
افغان مجاهد ولس لدی روان
وضعیت څخه ډیر په تنګ دی او
دوي ته دابې تفاوته ده چې د
چاحکومت راشي د مسعود که د
حکمتیار خو چې امنیت راولي
اسقرار رامنځ ته کړي ، داسې
هیڅکله ملت نه غواړي چې د
یوه حکومت دي راشي او هغه بل
دي له منځه ولاړشي اکثریت
ملت اوس ددې مخالف دی ،
ظاهراً خو دا پخپله یو دریمګړی
قوت ښکاري چې داله اصله
پخپله موجود شوی اودوی د
جګړه مار سیاست له امله رامنځ
ته شویدی ، زموږ یا بل چاپه
واسطه ندی رامنځ ته شوي .

الحاج مولوی جلال الدین حقانی په خوست کی دمجاهدینو دمتحدی اداری دفعالینو په غونډه کی :

# موږ ډیر کوښښ وکړ چی لومړی په کابل کی دمنلو وړ اداره او حکومت جوړ شی،

بسم الله الرحمن الرحیم

عزتمندو وروڼو!

په اختلاف کی چی څومره اضرار او گناه مو جوده ده او ددی له امله چی دخلکو کوم حقوق تلف کیږی او یادګیوږی او بی نظمی له امله په چا ظلم کیږی ددی ټولو پوښتنه به الله تعالی له موږ او تاسی نه کوی.

عزتمند و وروڼو! موږ باید دسیمو - تنظیمونو او قومونو بیلتون له منځه لیری کړو او داکیسی نوری له زړونو وباسو.

موږ له بی اتفاقی څخه ډیر ضررونه ولیدل دا اوس چی څه کیږی روانی دی دا مرګونه او بربادی دا جګړی او ظلمونه داټول دبی اتفاقی له امله دی.

حقانی صاحب وویل! زموږ دځوروللو لپاره دلته داسی کارونه کیږی چی امنیت ګوډ شی ترڅو مؤسسی خپل دفترونه وتړی او کومکونه قطع شی.

په کندهار کی هم دا کار وشو په ننګرهار کی هم دی ته زمینه برابره شوه چی مؤسسی خپل فعالیتو محدود کړی او که دلته یوه واحده او قوی اداره نه وی چی امنیت تأمین کړی دلته به هم داکار تر سره شی داکار قصداً کیږی او په قصد سره دځینو سیمو دامنیت دمختل کولو هڅی روانی دی.

حقانی صاحب وویل: باید پدی اداره کی داهلیت له مخی مسؤلین وټاکل شی- قوم او تنظیم په پام کی ونه نیول شی.

(دغونډی برخوالو ټولو دخپرو دمنلو او تطبیق په جهت کی دعا.)

دتعیناتو له اعلان وروسته حقانی صاحب په لنډ و ټکو کی وویل:

اوس چی د خدای په فضل موږ او تاسی ته الله تعالی دا توفیق را په برخه کړ چی دټولو په اتفاق دولایت والی، مرستیال او نورو شعبو مسوولین او مجموعی اداره و ټاکل شوه داهم باید ووایم چی څوک پدی ارګانونو کی مسوولین ټاکل شوی ډیر دروند مسوولیت ورپه غاړه شوی دی.

**دمسؤولینو په ټاکنه کی دتنظیم او قوم ملحوظ په نظر کی ندی نیول شوی- بلکی اهلیت ته کتل شوی دي.**

دمحترم حقانی صاحب له خبرو سره دتائید لاسونه پورته کړل او متصل یی دعا وکړه دزړه له جوش نه دعااو دحقانی صاحب

حضرت محمد صلی الله علیه وسلم فرمایی: که په دریو کسو هم چا امارت وکړ دمحشر په

ورځ به لاس تړلی راوستل کیږی ، بیا به له محاسبی وروسته دی یا خپل عدل او صداقت خلاص کړی او جنت ته به ځی او یابه خائن وګڼل شی او دوزخ ته به اچول کیږی.

حضرت عمر (رض) دوفات کیدو په وخت کی سوال وکړ: ای خدایه چی خلافت ته په کوم ایمان ننوتلی یم بیرته می په هغه ایمان ورځخه راوباسی، اجر نه غواړم چی اوبال او ګناه نه وی راباندی بارۍ ځکه خو باید مسوولین دی ټکی ته ښه پام وکړی او پخپلو ور سپارل شویو وظیفو کی له اخلاص صداقت امانتداری او جدیت څخه کار واخلی.

همدارنګه الحاج مولوی جلال-الدین حقانی پدی اړه دامریکی غږ خبریال دیوی پوښتنی په ځواب کی وویل: په خوست کی دیوی اتفاقی او متحدی اداری جوړیدل او ددغی اداری په سیوری کی خلکو ته خدمت کول دادسیمی د قوماندانانو ، علماوو او مشرانو لومړنی مکلفیت وُ، موږ ډیر کوښښ وکړ چی لوموړی په کابل کی دمنلو وړ اداره او حکومت جوړ شی، سوله او امنیت ټینګ شی او جګړی بندی شی. له همدی امله په خوست کی د اداری دفعالیدو کارونه له څه څنه سره مخامخ شول څرنګه چی دکارونو د اجراً لپاره دمسؤلو مراجعو موجودیت ته ډیر ضرورت دی ځکه خو په خوست کی دتعلیم او تربیی روغتیایی چارو، زراعت او اعمار مجدد لپاره دیوی اتفاقی اداری په چوکاټ کی دمربوطه شعبو او مسوولینو تعین لومړنی او ضروری کار دی، او خوست چون دیوه اوږده او سخت جنګ په نتیجه کی فتحه شوی ځکه خودلته هر څه ورا ن ویجاړ دی او دا هلته جوړیدلی شی چی په یوه اداري چوکاټ کی هری برخی ته یوه مسؤله مرجع موجوده وی ځکه خو موږ قوماندانان ، علما ، قومی مشران ټول را غونډ کړل، ددی لپاره یی یوه شورا جوړه کړه او له تنظیمی او قومی شورا ګانو څخه یوه متحده ولایتی شورا جوړه کړی شوه، ددغی شورا له منځه یو هیئت ته وظیفه ور کړی شوه چی دتشکیلاتو او تعیناتو لپاره یوه لایحه عمل جوړه کړی دا لایحه دټولو له خوا تصویب او ومنل شوه او دټول کمیسیون له منځه یوه هیئت ته وظیفه او صلاحیت ور کړ شو چی هغوی تعینات وکړی او په همدی اساس ریاستونه او دهغوی معاونین تعین شول او دنور پرسونل دتعین لپاره هم یو کمیسیون ټاکل شوی چی دهری شعبی لپاره تعینات تکمیل کړی.

دخوست اداره دټولو قوماندانانو قومی مشرانو او علماؤ په تائید ، همکاری او ملاتړ منځ ته راغلی ده.

محترم حقانی صاحب دامریکا غږ خبریال ددغه پوښتنی په ځواب‌کی چی دکوم تنظیم قوماندانانوته مهم او ستر پوستونه ور کړی شوی وویل: دمسؤلینو په ټاکنه کی دتنظیم او قوم ملحوظ په نظر کی ندی نیول شوی- بلکی اهلیت ته کتل شوی دي.

موږ باید دسیمو – تنظیمونو او قومونو بیلتون له منځه لیری کړو او داکیسی نوری له زړونو وباسو.

موږ له بی اتفاقی څخه ډیر ضررونه ولیدل دا اوس چی څه ګوډی روانی دي دا مرګونه او بربادی دا جګړی او ظلمونه داټول دبی اتفاقی له امله دي.

# دخوست دمتحدی ولایتی اداری فعالیدل

*لاندی مطلب چې دیوی قطعنامی بڼه لری د۱۳۷۱ لمریز کال دحوت په (۲۵) نیټه دخوست داداري ارکانونو دمسئولینو دټاکنی په غونډه کې دخوست ولایت دمرستیال محترم ارمان له خوا اورول شوی چې معرفي یې په خوست کی دمجاهدینو له خوا دمتحدی اداری دجوړیدو او فعالیدو په اړه دیوه تاریخی سند او پریکړی په توګه خوندی ساتو – اداره*

دالله په نوم چه دافغانستان مجاهداو دزماني اتل ملت ته ئی ددی توان ورکړ، چه په دنیا کی دداسی ځواك او قوت مقابله وکړی چه دنیا والو ئی دظلم او وحشت لپاره ډیر وړاندی په ځانونو کی دکمزوری احساس کاوه، په فکری او جنګی لحاظ ئی دمخنیوی روحیه عملاً له لاسه ور کړی وه. د الله (ج) په نوم چه دافغانستان مجاهد او قهرمان ولس ته ئی په خالی لاس په هغه دښمن باندی بری ور په برخه کړ، چه ځان یی اتومی قدرت باله، دالله په نوم چه دافغانستان مجاهد ملت ته ئی داسی دوستان ور په برخه کړل، چی بی سرپناه او مظلومو مهاجرو ته ئی دډیرو قدرمنو میلمنو په حیث دخپلو ملکونو دروازی پرانیستی، په سرپناه، خوراك او عملی جهادئی دافغانستان دقهرمانو او اتلو مجاهدینو ملاتړنګه کړه. موږ علماء – مجاهدین– قوماندانان ، سپین ږیری دخوست دولایت لپاره چه دقهرمانو مجاهدینو په متو دډیرو زیاتو ستونزو او شهادتونو په قبلولو په داسی وخت کی فتحه شو چه دافغانانو بعضی دوستانو نور دمجاهدینو مسلح بري ته امید نه ؤ ، لوی الله(ج) دخوست ولایت دمجاهدینو زړونه قوی کړل ، او په ملحد دښمن ئی بری وربه برخه کړ، داسی لوی بری چی دټول افغانستان لپاره ئی دفتحي دروازه خلاصه کړه او مجاهدینو ته ئی دبیا په پښو ودریدو توان ور وبخښه ، دمجاهدینو دوستان ئی مطمئن کړل، چه مجاهدین ددی توان او طاقت لری چه په ملحد دښمن باندی دالله دنصرت په ذریعه دتوری په زور بریئ وموندلای شي.

په لاندی ډول دخوست دمجاهدینو دوحدت او یووالی په چوکاټ کی داسی اعلانوو.

۱– په خوست کی به دافغانستان دټولو مجاهدینو – قومونو او قبیلو ژوند ته لار خلاصه وی.

۲–دتاجکستان مهاجرین کولای شی چه خوست ته راشی.

۳–دکابل دولایت مهاجرینو او اوسیدونکو ته په خوست کې داوسیدلو لار خلاصه ده.

٤–داچه خوست دیوه دوامداره جنګ په نتیجه کی آزاد شویدی، طبعی ده ، چه دخوست ولایت مربوط ټول کلي– مسجدونه– مدرسی– ښوونځی– پلونه– سړکونه– بندونه– ویالي – زراعتی ځمکی او عامه شتمنی له منځه تللی دی ، ټولوکمك کوونکو مؤسساتو ته بلنه ور کوو چه په خوست کی خپلو کارونو او کسکونو ته دمساعدی آب هوا په درلودلو – سرحدی لنډی لارې داکمالاتو په وجه په ډاډه زړه دخوست داداری تر سرپرستی لاندی دوام ورکړی.

۵–دخوست ولایت متحده اداره دپاکستان حکومت له مقاماتو څخه په احترام غوښتنه کوی: لکه څرنګه ئی چی دمهاجرینو په ورتګ او استوګنی کی اوهمداراز دافغانستان دمجاهدینو او جهاد په چوکاټ کی بی دریغه – مالي– ځاني قرباني قبولی کړی. چی دافغانستان په تاریخ کی به نه هیریدونکی وی اوس هم په سرحداتو کی لګول شوو بندیزونو ته پای ورکړی . چه دمهاجرینو په بیرته راتګ او خوست ته دمختلفو روزمره ضروری موادو په انتقال کی ئی ډیری زیاتی بی موجبه ستونزی پیداکړیدی.

۶– دخوست ولایت ټولو مربوطه اوسیدونکو ، قومونو، قبیلو، قوماندانانو، مجاهدینو ، سپین ږیرو، علماء کرامو– منورینو– څخه په کلکه غوښتنه کوو چه داسلام تر سیوری لاندی امن قائیم کړی هره بده پیښه به دهر فرد لپاره چه دخوست اوسیدونکی وی په خاص ډول او دټول افغانستان لپاره په عام ډول بي له تاوان و خرابی څخه بله نتیجه ونلری.

۷– دخوست هوائی میدان دمرستو اوبشری مرستو درسولو په خاطر خلاص دی.

۸– په ټولو همجوارو ولایاتو او ګران افغانستان کی دمجاهدینو دکلی وحدت او مفاهمی غوښتونکی یو، امید دی چه باهمی تفاهم او مکمل وحدت مینځ ته راشی.

ومن الله التوفیق

# په خوست کې امنيتي او اداري ثبات:

## دبيارغاونې - نظم او اداري سمبالښت مثبت او روښانه جهت

په کابل کې دمرکزي اداري عدم استقرار ستونزو په ولاياتو کې هم خپل منفي اغيز په ځای پرې ايښې دی له همدې ځايه ده چې په ولاياتو کې سره لدې چې قوماندانانو او سيمه ايزو مشرانو دجهاد په اوږدو کې دتفاهم او تساند په فضا کې جهاد کړی خو په مرکزکې ډوانې بې ثباتي هلته دولايتي ادارو دجوړيدو او فعاليدو په مخه کې ګڼ خنډونه رامنځ ته کړي دي.

خوست هغه ولايت دی چې دجهاد په نتيجه کې فتحه شوی او مجاهدينو آزاد او خپلواک ساتلی دی.

دخوست مشرانو لکه د مجاهدينو ستر قايد الحاج مولوي جلال الدين حقاني تر ډيره دا کوښښ کاوه چې په کابل کې يو قابل قبول حکومت جوړ شي او پايداره سوله او امنيت رامنځ ته شي او دهغه حکومت او اداري له خوا دخوست دجهادي ځواکونو دهمکاری له مخې يوه اداره جوړه کړی شي.خو کله چې له اوږده انتظار او صادقانه هلو ځلو سره دغه هدف ته درسيدو په لار کې د اقتدار هوس او خپل منځي جګړي او کشالي ديوه ستر خنډ په توګه همداسې ولاړې پاتې شوې نو بيا خو لدې پرته بله لار نه وه چې په خوست کې داتفاقي اداري دجوړيدو لپاره په جدي اقدام لاس پورې شي، له همدې ځايه وه چې دخوست داداری فعاليدل له لږ څه ځنډ سره محامخ شول.

هماغه ؤ چې دټولو تنظيمونو، قوماندانانو، علماوو او قومو نو په اتفاق دخوست ولايتي اداره جوړه او خپل لومړني فعاليتونو يې پيل کړل که څه هم په کابل کې روانه بې ثباتي دنورو ولايتونو په څير دخوست داداری په فعاليتونو هم منفي اثر غورځولی خو لدې ټولو سره اوس اوس دخوست اداري ټولو ارګانونو خپل فعاليتونه پيل کړي او ورځ تر ورځې ئې د فعاليت ساحې پراخيږي موږ پدې رابطه دخوست له والي محترم عبد القيوم خان او دولايت له مرستيال محترم ارمان سره لنډې مرکې کړي چې په ګډه يې سره لولو:

زموږ خبريال دخوست له والي محترم عبد القيوم خان څخه دخوست دامنيتي وضعې په رابطه پوښتنه وکړه: دخوست والي پداسې حال کې چې له حالاتو څخه ډاډه او راضي معلوميده ووېل: لکه څنګه چې تاسې به هم ليدلي وي په خوست کې په بشپړه توګه امنيت ټينګ دی.

دخوست دامنيتي قوماندانۍ له خوا دښار په شپږ کيلومتری کې امنيتي پوستې ځای په ځای شوي - دغه پوستې بواځې دامنيت په تامين کې په خدمت لګيا دي لدې پرته دلارو په اوږدو او خپله ساحه کې دسيمې دخلکو اومسافرو لپاره دهيڅ ډول مزاحمت باعث نه دي کرځيدلی- نه دکومې پوستې له خوا له چا څخه دمحصول په نوم پيسې اخيستل کيږي او نه هم د ښار او لارو په اوږدو کې دبارېوونکو موټرو اوسوداګرو څخه دټکس په نوم څه اخيستل کيږي، ددغو پوستو او پاټکونو وظيفه بواځې دامنيت تأمين او ټينګښت دی.

**دخوست داداري ارګانونو دپوره او لازم فعالیت په لار کی دمرکزی نظام عدم استقرار موجود دی که هلته نظم او استقرار رامنځ ته شو په خوست کی به لدي زیات نظم او امنیت راشی**

بله مهمه خبره دا چی دخوست دښار په ساحه کی له مؤظفو اومسؤلواشخاصو پرته دوسلی په ګرځولو بندیز لګول شوی داکار په ډیره ښه توګه عملی شوی او لدی ناحیی ولس په ډیره مطمئنه فضا کی ژوند تیروی داهم باید ووایم چی په خوست کی زیاتره ښوونځی او مدرسی فعالی دی په صحی برخه کی هم په خوست کي ډیر زیات کار شوی همدارنګه نور حکومتی ارګانونه هم فعال شوی او خپل لومړنی فعالیتونه ئی په لار اچولی دی.

دخوست والی زیاته کړه: په خوست کی دمؤسسو لپاره دکار زمینه ډیره زیاته مساعده شوی دامنیت له ناحیی هغوی په ډیره اطمینانی فضا کی خپل فعالیتونه پیل کړی دی، دوی زیاته کړه: دا زموږ داداری دفعالیت لومړنی ګامونه دی - دلته موږ هرڅه له صفر نه شروع کړی ځکه خوست دیوه سخت جنګ په جریان کی فتحه شوی له همدی امله دخوست مشکلات دنورو برخو په نسبت زیات دی. خو زموږ باور دی چی په کابل کی به دامنیت او ثبات په ټینګیښت سره دخوست پاتی ستونزی هم حل شی- پدی اړه موږ دخپلو مربوطه ارګانونو د مسؤلینوله اخلاص او

همکاری څخه ډاډه یو پدی هکله دخوست ټولو ولسونو له موږ سره همکاری کړی او یوه اتفاقی اداره جوړه او فعاله شویده، که څه هم دخوست له ساحی دباندی دلاری په اوږدو کی کله ناکله مؤقت مزاحمت پیدا کیږی خو ډیر ژر دتفاهم او اتفاق له مخی حل او فصل کیږی ځکه خو موږ دلارو په اوږدو کی څه خاص مشکل نلرو- ټولی لاری خلاصی دی او تجارتی مالونه او دسوداګرو قافلی په پوره امنیت لدی لارو څخه تیریږی.

کله چی زموږ خبریال دخوست له والی څخه دکابل دروانی وضعی او جګړو په هکله پوښتنه وکړه پداسی حال کی چی دوالی په څیره کی دتاثر نښی څرګندی شوی په دردمنه لهجه ئی وویل: هغه وخت چی زه په کابل کی وم وضعه تقریبا بده نه وه موږ ته هم پدی هکله ډیر امید پیدا شوی وُ چی خدای(ج) به وضعه نوره هم ښه کړی. خو وروستی پیښی ډیری خواشینوونکی دی، موږ پدی ډیر دردیدلی یو زموږ هیله او کوښښ دی چی داجګړی بندی شی او یو قوی مرکزی حکومت په هیواد کی داستقرار او ثبات باعث وګرځی، ددی کار لپاره ضروری ده چی مشران ورونه په اخلاص قدم پورته کړی او دداسی

یوحل په لورګام واخلی چی دیوی عملی طرحی په وړاندی کولو دسولی، امنیت او استحکام لار اوارهکړی.

همدارنګه زموږخبریال دولایت له مرستیال محترم ارمان سره هم پدی اړه خبری کړی ، محترم ارمان چی دحالاتو په تحلیل او مطالعه کی لوی لاس لری اوپیښنی او واقعیتونه په ژوره او علمی توګه ترڅیړنی لاندی نیسی پداسی حال کی چی دچارو دلاسمون او سمبالښت په اړه جدی او مصمم معلومیده داداری دجوړښت او فعالیت په اړه په تفصیل سره وویل:

دخوست اداري دروان کال دحمل له میاشتی وروسته فعالیت پیل کړی، ددغی اداری په جوړښت کی له پیله داهڅه شوی چی دمختلفو اړخونو په منځ کی دیوه هر اړخیز تفاهم له مخی قناعت رامنځ ته کړی شی، دولس ذهنونه دی ته اماده شول چی پدی اداره کی کوم ارکان ټاکل شوی هغه قابل قبول او داطاعت وړ دی.

لکه مخکی می چی ورته اشاره وکړه ولس پخپل انداز کی پدی قانع شو - البته ددی جریان مخالفین به هم وی دهغوی مخالفت ته چی ترکومه سیاست جواز ورکوی هغه په پام کی نیول شوی هغوی هم زموږ وروڼه دی، موږددوی انتقاد په سړه سینه اوریدلی، ښایی ووایم چی په یوه ولایتی اداره کی ټول دکارونو سرپرستان او متصدیان نشی جوړیدی ، کیدی شی هغو باکفایته هم وی خو موږ دهغوی انتقادونو او مشورو ته لار خلاصه

پرې ايښې.موږ داکوښښ کړی چی ټول ذهنيتونه په يوه اداری چوکاټ کی راشی او يوه داسی شورا جوړه شی چی دملو او پريکړو دعملی کولو چانس او قابليت يی زيات وی ، البته موردفعلی شرايطو او ظروفو په چوکاټ کی پدی هڅه او تلاش کی يو چی يوه مثل شوی شورا که په قومی لحاظ وی او ياپه تنظيمی لحاظ خوچی باکفايته اهل او مستعد وروڼه پکی شامل وی فعاله کړو او دغه وروڼه پدی نظام کی شريک شی ځکه چی نظام مشاورين او شورا سره چلولی شی.

په خوست کی داداری دپرمختګونه په لړکی دامنيت مسئله لومړنی ځای لری ، موږ په خوست کی امنيت ته ډيره زياته پاملرنه کړی او تر جدی غور لاندی مودا مسئله نيولی ده که څه هم زموږ مشکلات زيات دی چی پدی کی دتربيه شوی پرسونل کمبود او دباتجربه اشخاصو کموالی يوه ستره ستونزه ګڼلی شی، تنظيمی مشکلات هم موجوددی خو لدی ټولو سره سره موږ دسولی او پوره تفاهم په فضا کی پدی وتوانيدو چی امنيت ټينګ کړوکه څه هم په ټولو اداري واحدونو کی داداري ځانګی پوره ندی فعالی خوپه مجموع کی دامنيت وضعه دډير اطمينان وړ ده .

محترم امان زياته کړه:

موږ په خوست کی امنيتی پاټکونه ايجاد کړی په ښار کی موټوسلی په ګرځولو بنديز ولګاوه او لدی څخه ټولو پوره اطاعت وکړ - چی داکارموږ، ولس ، قومونو او قوماندانانو احسان بولو چی هغوی ددی ډير ښه اطاعت وکړ او دانظم يی ډير ښه مراعات کړ.

خو دابايد ياده کړم چی دخوست امنيتی پاټکونه داسی ندی لکه په نورو سيمو کی ؛ زموږ دامنيتی پاټکونو په ساحه کي يوه پيسه هم نده اخيستل شوی او ددی لپاره چی دټکس نظام ظالمانه بڼه نه وی غوره کړی نو دغلا، ظلم او ګډوډی دمخنيوی په خاطر تر اوسه دټکس او محصول په نوم هيڅ شی ندی اخيستل شوی.

همدارنګه اکثره څانګی او ارګانونه فعال شوی ، په تعليمی ، روغتيايی ،قضايی برخه کی ډير پرمختګ شوی هوايی ډګر دپروازونو لپاره آماده دی دملګرو ملتونو او دولت الوتکی لدی ډګرونو څخه پروازونه پيل کړی. هغه ارګانونه چی په دولت کی تشکيلات لری دهغو دفعاليت ابتدايی مراحل فعال شوی خو څرنګه چی خوست له مرکز څخه ليری او په مرکز کی هم بی امنيتی او ګډوډی موجوده ده دبودجی دنشتوالی له امله د اداری دارګانونو دمؤثر او ګړندی فعاليت په لار کی مشکلات پيداکيږی. ځکه خوبايد ووايم چی دخوست داداری ارګانونو دپوره او لازم فعاليت په لار کی دمرکزی نظام عدم استقرار موجود دی که هلته نظم او استقرار رامنځ ته شو په خوست کی به لدی زيات نظم او امنيت راشی ، خوست مرکزی حکومت ته هيڅ ډول مشکلات ندی پيدا کړی.

په خوست کی ټولو مؤسساتو ته دامن فضا برابره شوی دملګرو ملتونو دفتر خلاص دی او پدی رابطه هلته ډير اطمينان موجود دی.

محترم ارمان وويل:يوه خبره چی په ځينو اخبارونو کی هم خپره شوی هغه د ځدرانو دپاټکونو مسئله ده. که څه هم هغه سيمی دګرديز داداري چوکاټ تر اثر لاندی دی خو دروابطو له مخی داسی فکر کيږی چی داګنی دخوست ساحه ده.

له هغوی سره هم زموږ مفاهمه روانه ده، ځدراڼ ډير ميړنی قوم دی دجهاد دلومړنی قيام مخکښان دځدراڼو قوم دی په جهاد کی يی ډير ستر نقش او افتخارات ګټلی دی - دا دجهاد مدرسه ګڼلی شی مسلح حرکات له همدی ځايه پيل شوی دځدراڼو مشران دجهاد علمبرداران ګڼل کيږی زموږ باور دی چی دوی به همداسی دسولی علمبرداران هم شی، دوی به دخپلو غازيانو او شهيدانو قدر دانی کوی دوی به دشهيد مولوی فتح الله - شهيد اسد الله جهاد وال - شهيد مطيع الله - شهيد مولوی احمد ګل او نوروشهيدانو په نقش قدم دهغوی دارمانونو دتحقق په لار کی دورورۍ لاسونه‌ورکړی.

خپله محترم حقانی صاحب چی نه يوازې په افغانستان کی دده علمی او جهادی شخصيت دمجاهدينو دوياړ او افتخار باعث دی، بلکی په بين المللی سطحه يو پيژندل شوی او منلی شخصيت دی او داسی نورعلما او مشران موجود دی چی ډير خدمتونه يی کړی او ډيری قربانی يی ورکړيدی .

زمايقين دی چی دځدراڼو غيرتی ولس دخپل فهم او ادراك له مخی دوروروګلوی په چوکاټ کی دی ته متوجه دی او باور دی چی دا ډول مزاحمتونه به ختم کړی.

دننگرهار شورا او داحمد زيو دقوم ترمنځ دسولې او جوړې په اړه:

# ديوې تاريخي روغې جوړې

# تاريخي سندونه

په ننګرهار کې دمجاهدينو داتفاقي اداري او شورايي سيستم دايجاد او فعاليدو له امله امنيتي او اداري وضعه ډير دارمنه او اميد-بخښونکې معلوميده دولايت ټول ارګانونه له هماغه لومړنيو وختونو راهيسې مسلسل فعال ساتل شوي او ولايتي اداره له يوه ښه پرسټيژ او معقول حاکميت څخه برخمنه وه.

په کابل کې دسولې په اړه او په تيره د جلال آباد دترون له امله دننګرهار دولايتي اداري او حاکميت نقش نور هم جوت او ديوه قوي او مؤثرڅواك دتحرك تمايندګي او ترګندويي کوله- له همدې ځايه وه چې دننګرهار اداري يو مثالي حيثيت خپل کړي ؤ. خوله بده بخته بدو سترګو او بدو نيتونو خپل کار وکړ او دحاجي شمالي خان دوژل کيدو واقعې او لدې اړخه را ولاړ شوې وضعيت که له يوې خوا دننګرهار داداري ګټلي وقار او حيثيت ته صدمه ورسوله نو له بلې خوايې په سيمه کې په قومي بنيادونو ديوې خونړۍ جګړې اورهم بل کړ، اودبدخواهانو او غرضيانو لپاره يې دمنفي فعاليتونو لپاره مخه پرانيستله دجګړې دغه اور نژدې وه چې د افغانانو ترمنځ ددښمنيو او جګړو يونه ختميدونکې مصيبت او تسلسل رامنځ او دوامداره وساتي.

که څه هم پدې رابطه محترم حضرت صاحب صبغة الله مجددي او محترم حکمتيار صاحب هلې ځلې او کوښښونه وکړل خو دجګړې دبل شوي اور لمبې غلې نه شوې له دغه جګړې څخه را ولاړ شوي منفي اثرات دټول ولس دژوند په بيلا بيلو اړخونو کې محسوس شول ، دلاري دبنديدوله امله يې دګرانۍ او قحطۍ تهديدونکې اثرات رامنځته کړل دبې باورۍ او کرکې احساسات يې راوپارول او تر ټولو بده داچې دبهرنيو پرضد يې ديوه منفي ذهنيت او پروپاګند په ايجادکې ناوړه تبليغاتو ته لار خلاصه کړه.

دهمدغو خطرونو دمخنيوي په خاطر دمجاهدينو ستر قائد او دسولې داعي او مدافع الحاج مولوي جلال الدين حقاني چې هميش يې دروغې جوړې او سولې دټينګښت په جهت کې مؤثر نقش لرلي او پدې اړه يې ديوه ناجي په توګه داختلافاتو او جګړو له مرګوني تهديد څخه دولس دژغورنې په لار کې هلې ځلې کړې مخکې لدې چې دحالاتو جريان له کنترول څخه ووځي په خپل وخت دسولې او تفاهم لپاره خپل کوښښونه پيل کړل او ډير ژرقوماندان الحاج محمد ابراهيم عمري دمحترم حقاني صاحب دهدايت له مخې پدې اړه مقدماتي قدمونه پورته کړل او دسولې او اوربند لپاره يې مناسب شرايط او فضا مساعده وګرځوله.

هماغه ؤ چې محترم حقاني صاحب دخپل اسلامي درايت او سياسي بصيرت اوتدبر له مخې

The Afghanistan Islami Daulat
The Khust Vilayat
)Riast
Sanga

# دافغانستان اسلامی دولت

د خوست ولایت

د ( ۱ ) ریاست

) څانګه

بسم الله الرحمن الرحیم

نحمده و نصلی علی رسوله لکریم و بعدا دمسلمان قوم په منځ کی اختلافات او جګړی دقدیم تاریخ څخه واقع شوی دی او واقع کیږی لکه څرنګه چی د آدم علیه السلام دزامنو په مینځ کی او دیعقوب علیه السلام دزامنو په مینځ کی او دحضرت علی کرم الله وجهه او معاویه رضی الله عنه په مینځ کی او دنورو صحابه (رض) په منځ کی اختلافات او جنګونه واقع شوی دی او ترقیامته به جنګونه او اختلافات دوام لری او نبی کریم «ص» دعا وکړه چه خدایه زما دامت څخه منازعی او مناقشی ترقیامته پوری پورته کړی خو الله پاك ئی دعا قبوله نکړه نو الله پاك مسلمانانو ته همیشه په صبر ، صفحه ، عفوه او په احسان باندی اودبدی څواب په نیکی ارشاد کړی دی نو کله چی ددوو ډلو مسلمانانو په منځ کی جنګ شروع شو بی طرفه مسلمانانو ته خدای پاك ددوی داصلاح امر او ارشاد کړی لکه چی الله پاك فرمایلی دی :«و ان طائفتان من المؤمنین اقتتلو فاصلحو بینهما فان بغت احدهما علی الاخری فقتلو التی تبغی حتی تفیٔ الی امر لله فان فأت فاصلحوا بینهما بالعدل و اقسطوا ان الله یحب المقسطین.

حم سورة الحجرات

نو کله چه څه موده مخکی دننګرهار او سروبی او احمد زیو مسلمانانو په منځ کی لانجه پیښه شوه او عام قتل او قتول شروع شو ددی لانجی دحل دپاره موږ دصلحی هیئت جانبینو ته دصلحی خواست وکړ هو دوی موږ ته عام و تام واك او اختیار راکړ.

دصحلی هیئت دډیر تحقیق څخه وروسته لاندی فیصلی صادری کړی او دهرجانب څخه یې اوه میلیونه کلداری نقد ضمانت واخیست.

۱- هغه خلك چه په دواړو جانبو کی مړه شوی دی دهغه په باره کی د څینو ملحوظاتو په خاطر دصلحی هیئت یوکال کانی کیښود او ددغه ذکر شوی وخت په تیریدو یامخکی ددی تاکلی وخت څخه به دصلحی هیئت په ذکر شوی برمته دغه معامله انشاء الله فیصله کوی یعنی دمړو خلکو فیصله ددی هیئت په غاړه ده، جانبین به دمړو په معامله کی یو په بل کار نلری، دمړو خلکو دوارثانو حقوق کاملاًدصلحی دهیئت په لاس کی دی، دوی دواړو جانبو دخلاف په صورت کی په ذکر شوی برمته څانونه بند کړل او هم ئی دخدای په قرآن څانونه بند کړل.

۲- شخصی مالونه به جانبین یوبل ته واپس ورکوی او دواړه جانبه به خدای (ج) حاضر او ناظر بولی، حقه حقونه دمستحقینو ته ور کړی او که بیا هم دکوم جانب قناعت حاصل نشو نو دصلحی هیئت فیصله به ددوی په حصه کی آخری فیصله وی.

۳- دشمالی خان په عوض په شوراکی دده دګروپ یو صالح سړی چه دننګرهار مربوط وی مقرر شو لاکن چه دده دکورنی په استثنا وی.

٤- دواکي غونډ چه سابق ډپیر صاحب مربوط ږ هغه ډپیر صاحب زوی محمد آغاته ورکړ شو لاکن شرط به داوی چي پیر صاحب به داغنډ داسي شخص ته حواله کړي چي دجانبینو دقناعت وړ وي.

ب: دشمالي خان دننګرهار مربوطه قرارګاوی او مرکزونه دسابقه تعامل له مخي دټولو لوژستیکي او نظامي موادو سره ورته حواله شوه البته په دی قطعو کي دنورو ولایاتو او سابقه رژیم او نورو تنظیمونو خلك دشمولیت حق نه لري.

ج- هغه مرکزونه او قرار ګاوی چه احمدزیو دمقابل لوری څخه ددی موجوده شخړی په سر نیولی دی هغه خپلو مربوطه قوماندانانوته چه په سروبی اوزبین، تیزین، حصارك او ملاعمر بابا کي موجودیت لري سره دلوژستیکي او نظامي موادو په مکمله توګه حواله شوه.

٥- دننګرهار اداره باید دسابق په شان خپلو شوراګانو او وظایفوته ادامه ور کړي او دسابقه تعامل له مخي دقوماندانانو سره چار چلند وکړي چه دچا قانوني شکایت پورته نشي او کوم قطعات او جزتامونه امنیتي یانظامي چه دننګرهار د اداری له لاری اکمال کیږي هغه دېاداری دحکم پیرو او خپلو وظایفو ته د اداری دحکم سره سم دوام ور کړي.

٦- دکابل څخه تر طورخم پوری باید هیڅ نوع پاټك غیر اصولي او غیر قانوني دمحصول او جریمي په بهانه وجود و نه لري او کوم کسان چه ددغه مادي خلاف ورزی کوی ددغو کسانو مقابله او مخ نیوی به جانبین په مشترك ډول کوی هیڅ نوع تنظیمي یاقومي ملاتړ به جانبین نکوی.

٧- دفیصلي داعلان څخه وروسته باید په دوو ورځو کي جانبین شوراګاني لښکرونه او سنګرونه دیوبل په مقابل کي په کلي ډول ختم کړي او خپل عادي ژوند ته دوام ورکړي.

٨- هغه قوماندانان چه دشمالي خان دمرګ څخه وروسته دشورا او وظیفو څخه تللي دي باید خپلو، خپلو وظایفو ته چه شورا ورته سپارلي دي حاضر شي.

٩-دفیصلي داعلان څخه وروسته سمدستي باید دصلحي هیئت او جانبین منتخب شوی هیئتونه په مشترك ډول دفیصلي دموادو په تطبیق کي اقدام و کړي.

ومن الله التوفیق، والله اعلم و الله علی امانقول وکیل

د حکمیت مشر مولوي جلال الدین حقاني

Hezb e - Islami Afghanistan
Head Office of Molvi Jalal ud Din Haqqani
For Social Affairs of Afghan Mujahidin
Date




**حزب اسلامی افغانستان**
دفتر مرکزی مولوی جلال الدین حقانی
اداره خدمات اجتماعی مجاهدین
تاریخ ۱۵ / ۹ / ۷۲ ش

مور. دننگرهار شورا او احمد زیو شورا چه کلی واك او اختار مو دواړو جانبو دصلحی هیئت ته ور کړی ؤ او دصلحی هیئت په ۱۱-۸-۱۳۷۲ کال (۸۷٦) نمبر فیصله صادره کړه مور. دواړو جانبو نوموړی فیصله چه په نهو مادو کی لیکل شوی او په ډاکه کې اعلان شوه دټولو مادو سره ومنله لکن ځرنگه چه دذکر شوی فیصلی په دریمه ماده کی دشمالی خان په عوض دده نماینده چه دده دکورنی په استثنا وی دصلحی دهیئت دطرفه تعین شوی ؤ اوس ددی لپاره چه فیصله ډیره مؤثره او دبهبود طرف ته روانه شی نو دشمالی خان دنماینده په عوض دده ورور حاجی منجی ددواړو جانبو په توافق ومنل شو او مور. دواړه جانبه مشران دصلحی هیئت ته ددی لیك پواسطه اطمینان ور کوو چی مور. نور ټوله فیصله منلی ده لاکن فقط حاجی منجی زمور. سره دفیصلی دبهبود په خاطر تاسو هم و منی.

ومن الله التوفیق

هفته نامه
# اتحاد اسلامی
بیانگر آرمان اتحاد اسلامی افغانستان
شماره مسلسل (۳۱۰) سال دهم - شماره چهاردهم

بازتاب فعالیت های صلح در مطبوعات

## په سروبی کی تراوربند وروسته آرامی ده

په سروبی کی تراوربند وروسته آرامی ده

### مینځګړو دلو هڅې ګړندی کړی او دواړو خوا مولوی «حقانی» ته تحریری واک ورکړی .

کابل ، د تلې ۲۷ د اتحاد اسلامي خبريال :

په سروبی کی تر پنځه ورځنی جګړی وروسته اوس اوربند نافذ شوی او دواړه خوا وی پردی راضي شوی چی دا مسئله د خبرولو لاری حل کړی .

د توموری ښار څخه د اتحاد اسلامي خبریال خبر راکوی چی اوربند هغه وخت نافذ شو کله چی د دواړو خوا د څخه مینځګړو دلو وغوښتل چی دا مسئله دخبرو له لاری حل کړی په مینځګړو دلو کی د دولت یو با صلاحیته هیئت د حزب اسلامی یو هیئت او د جلال الدین حقانی په مشری یو بل هیئت شامل دی ، اوس دواړو خوا و د خپلوغوښتنو اووړاندیزونو سره سره مولوی جلال الدین حقانی ته تحریری واک ورکړی چی دا مسئله په منصفانه توګه حل کړی د احمد زیو مشران وایی باید ټول هغه اموال اووسایل چی د حاجی شمالی څخه اخیستل شوی شورانه وسپارل شی د ننګرهار په شورا کی دهغه دنده بیرته د هغه یو بل تن ته وسپاری او قاتلین یی محاکمه شي خو د ننګرهار شورا بیا تکرار وی چی موږ په دی لټه کی یو چی د هغه قاتلین پیدا کړو.

زموږ خبریال زیاتوي امید دی چی دواړه خوا وی د مینځګړو دلو فیصلی ته غاړه کیږدی او که خدای مکړه دا لانجه دوام وکړی د نورو بدو عواقبو تر څنګ به کابل ښار د سختی اقتصادی محاصری سره مخ کړی .

## شاهراه عمومی کابل-جلال آباد به روی ترافیک بازگردید

جلال آباد - ۲۷ میزان :

شاهراه عمومي کابل - جلال که تقریباً دوهفته قبل به روي ترافیک مسدود گردیده بود بروز سه شنبه ۲۷ ماه میزان دوباره بازگردید

طبق گزارش : الحاج مولوي جلال الدین «حقاني» که ریاست هیئت صلح نزاع جاري درمسیر شاهراه رابه عهده دارد اعلان کرد که به موافقه جانبین شاهراه براي مدت ده یوم که مدت منازعه نیز تعیین شده است به روي ترافیک بازبوده آتش بس مراعات مي گردد. نادرنتیجه تلاش هاي هیئت صلح یك آتش بس دايمي قائم ومصالحه به میان آید .

بناءً شاهراه سرازروزسه شنبه ۲۷ ماه میزان بروي ترافیك بازوحوالي عصرهمین روزچهارعراده موترسواري ازجلال آباد به طرف کابل حرکت کرد .



شهادت

ارګان مرکزي حزب اسلامي افغانستان

(۸) صفحه

(۱۱) عقرب ۱۳۷۲ هـ ش (۱۸) جمادي الاول ۱٤۱٤ هـ ق

دجلال اباد جهادي شورى اوداحمدزيو دقوم مشرانو په يوه دايمي اوربند موافقه وکړه

پېښور – دلړم ۱۰:

شامل دواړو خواوو په يوه دايمي اوربند اوولاتي په آزادو ... پاملني موافقه وکړي اوان شا. الله العزيز چې دامسئله په توره هم په ښه صورت حل وفصل شي .



## په ننګرهار کې دلانجې په حل کې دمنځګړي هيئت څرګندونې

د ننګرهار دجهادي شورى اواحمدزيو دقام ترمنځ دلانجې په حل کې دمنځګړي هيئت مشر مولوي جلال الدين حقاني له احمدزيو سره دخبرو لپاره سروبي ته رسيدلى اوخلته يې وويل چې دخبرو لومړى پړاو پيل شوى دى، همدارنګه د ننګرهار دجهادي شورى سره هم وکتل اودهغوى سره د موضوع په اړوند خبرې وکړې دى وويل ښايي په مقدماتي ډول دکابل تورخم لاره دليسو ورځو لپاره پرانستله شي

دى وويل ددواړو خوا غوښتنې بايد دانعطاف په لور څرګنيت ولري ترڅو دغه لانجه اواره شي ، دى دغه شان وويل چې که دواړو خواو کې کومه خوا دمنځګړي هيئت فيصله ونه منله نو هغه جريمه ګري واخيستله شي چې په دې اړه فاګل شوى دى .

دکابل تورخم لاره له څو ورځو راهيسې خوا دتراپنګو پرمخ تړلې چې دغه کار دخوراکي اواستهلاکي موادو دبيو په لوړوالي ژورتاثير اچولى اودکابل خلک له زياتو ستونزو اوکړاوونو سره مخامخ دي

# په خوست کې داتحاد علمای افغانستان تر سرپرستی لاندی

## دجهادی قوماندانانو، قومي مشرانو او ولایتی ارگانونو دمسؤلینو گډه غونډه

د ۱۳۷۲ لمریز کال د زمري میاشتي په ۳ نیټه په خوست کې د اتحاد علمای افغانستان تر سر پرستي لاندې په هیواد کې د سولې ، ثبات او د اختلافاتو او جگړو د مخنیوي او په بشپړه توگه د اسلامي نظام د پلي کولو په غرض په هیواد کې د سرتاسري تفاهم په غرض ، یوه ستره او پرتمینه غونډه جوړه شوه - پدې غونډه کې د مجاهدینو سترقائد الحاج مولوي جلال الدین حقاني ، د خوست والي ، د ولایت مرستیال او د ولایتي ادارو رئیسانو او مسولینو او همدارنگه گڼو جهادي قوماندانانو او قومي مخورو برخه درلوده ، غونډه له غرمي مخکې په لسو بجو د خوست د جامع جومات په احاطه کې د قرانکریم د مبارکو ایتونو په تلاوت سره پیل شوه ، لومړی مولوي عبدالوارث په خپله افتتاحیه وینا کې وویل : تفرق په هیڅ نوم او عنوان جایز ندي د حزب ، قوم ، سمت ژبي او...په هیڅ نوم تفرق روانديي .

ده وویل : د مجاهدینو د بي اتفاقي له امله د کمونستانو بقایاوو او ملحدینو ته د فعالیت زمینه برابره شویده د مسلمان مکلفیت د مسلمانانو په منځ کې د سولې مکلفیت دي چې باید سوله وکړي، مور باید له هغو سره ملگري شوچې د سولې لپاره کارکوي .

للي وروسته استقبالیه شعر وویل شو او وروسې مولوي قلندر وینا وکړه چې په یوه برخه کې یې وویل: مسلمان باید له مسلمان پرته بل څوك دوست ونه نیسي ، ده وویل چې د کفارو په دوستي کی ددنیا او آخرت زیان دي مور باید کمونستان او دهغوی بقایا له خپلو څنگو څخه لیرې کړو او یو واقعي اسلامي حکومت جوړ کړو

بیا مولوي حفیظ الله مجددي ته د وینا بلنه ورکړی شو ، ویې ویل : مور په حکومت پدې هیڅ اعتراض نلرو چې دا دکوم تنظیم حکومت دي د کوم سمت او څوك دي بلکې پدې اعتراض کوو چې اسلامي احکام یې په بشپړه توگه ندي تطبیق کړي او کمونستان یې پخپل څنگ پورې نیولي دي .

له دي وروسته د مجاهدینو ستر قاید الحاج مولوي جلال الدین حقاني ته بلنه ورکړی شوه چې

خپله وینا اووروي
حقاني صاحب له حمد او ثنا وروسته وویل :
عزتمندو مسلمانانو ! تاسي چي له لیری لیری سیمو نه د اسلام او مسلمانانو د امورو د اهتمام لپاره حاضر شوي یاست او تکلیف مو ایستلي له الله تعالي (ج) نه تاسي ته د هر قدم اجر غواړم - موږ لدغه علماوو ډیره مننه کوو چي په خوست کي دغه پرتمیني غونډي ته راغلي دي تر څو د خپل وطن او ملت لپاره د اسلامي سوچه نظام په رڼا کي دسو کالي سولي او ترقي لپاره لار پیداکړو او دمو جوده دربدریو او جګړو مخه ونیسو دادیره نیکمرغي ده چي تاسي د خوست په جامع جومات کي په داسي حال کي چي له یوه خدای نه ماسوا له بل هیچا ویره نلري او ددین غم خوري او خپل نظر په آزادانه توګه د اسلام او وطن په حق کي څرګندوي راغونډ شوي یاست،د هیواد له مختلفو ولایتونو څخه دالله تعالي ددین حامیان مجاهد علما چي په جهاد او هجرت کي یې له هیڅ ډول قرباني دریغ ندي کړي او ددوی په فتوي جهاد او قیام شروع

> موږ باید داسي عملونه ونکړو چي ملت له مجاهدینو څخه زړه توري شي او دجهاد وسله په خپل منځي اختلافاتو اوتربګني کي استعمال کړو

شوي او له روسانو څخه یې خپل وطن آزاد کړی اوس هم تاسي مکلف یاست لکه څنګه مو چي دحق په لار کی جهاد کړی دی،د حق په اظهار کی هم جهاد وکړی .
عزتمندو ورونو ! کمونستان او ملحدین هیڅکله هم زموږ دوطن لپاره دوستان نشي کیدی کله چي د اسلام پیغمبر حضرت محمد صلي الله علیه وسلم مکه فتحه کړه کافران یې معاف کړل ، خو پداسي حال کي چي هغوي په اسلام مشرف شول داسي نده شوي چي دوی ته یې په حکومت کي ځای ورکړي او داسي هم نه چي همداسي یې پخپل کفر کي پري ایښي وي، هغوي د مسلمانانو فرمانده ندي پاتي شوي مسلمان باید برلاسي وي نه داچي محکوم وي .
الحاج مولوي جلال الدین حقاني زیاته کړه : هغه جهاد چي کمونیزم یې په ټوله نړۍ کي له شکست سره مخامخ کړ، د روس امپراطوري یې ډړي وړي کړه اوس نو د کمونیزم د بقایاو و ختمول او ډیره" مستقر اسلامي حکومت جوړول کومه سخته خبره نده .
محترم حقاني صاحب د خپلو خبرو په ترڅ کي وویل : موږباید داسي عملونه ونکړو چي ملت له مجاهدینو څخه زړه توري شي او دجهاد وسله په خپل منځي اختلافاتو او تربګني کي استعمال کړو، باید په لارو کي پاټکونه وانه چوو لارې بندي نه کړو ځکه دا یو ډول قطاع الطریقي هم ګڼل کیدی شي ، بیت المال خپل

شخصي مال ونه گڼو نن چې
علما قوماندانان او د قوم
مشران راټول شوي ددې لپاره
چې په حکومت کې اصلاحات
راوستل شي د مفسدينو
مخنيوی وکړي حکومت په
اسلامي پاليسي روان او د عدل
اونصاف حکومت جوړ کړي
علماء د همدې لپاره راغلي او
همدا مقدس هدف په مخه کې
لري، تر څو د ظالم او مفسد
مخه ونيول شي د ملت مال ،
ناموس او ابرو محفوظه و
گرځول شي او حکومت او نظام
په بشپړه توگه اسلامي شي .
له حقاني صاحب وروسته د
اتحاد علماي افغانستان مشر
محترم ذاکري صاحب وينا
وکړه‌يې ويل : گرانو حاضرينو
مسلمانانو ! د جامعي مشر د
جامعي خادم دې په اسلام کې
آمريت اومشري د باداري په
معنا نده بلکې د خدمت په
معنا ده .
ذاکري صاحب زياته کړه : د
کابل په حکومت کې څه نواقص
شته دوي تر اوسه داسلامي
حکومت اونظام د قايمولو وعدې
ندي پوره کړي ، ددغې وعدې
د عملي کيدو لپاره ټول ملت
قرباني ورکوي ، اوس زموږدا
گيله ده چې دا وعده نه ده پوره
شوې زموږ د مجاهد ملت
قرباني داسلام لپاره وه د
اسلامي نظام د قايمولو لپاره وه
، د خوست مجاهد ولس هم دا
ټولې قرباني د همدې لپاره
ورکړي ، دوي د هر څه قرباني
ورکړه د سر ، مال او لاد ټولو
قرباني ته حاضرشول .
ذاکري صاحب زياته کړه : موږد
باداري او مشرتوب لپاره دلته
نه يوراغلي ،زه هم پدغه
اجتماع کې يو شخص يم .
ورونو ! په کابل کې ډير بد
حالت روان دی د اقتدار
جنگونو د ملت وقار او جهاد ته
سخته صدمه رسولې ده موږ
ددغو جنگونو د بندولو لپاره
راولاړ شوي يو او ډيره سوچه
اسلامي نظام د قايمولولپارهلې
ځلې کوو موږپه ډاگه اعلان
کوو چې موږ نه پښتانه يو ، نه
تاجک يو او نه ازبک يو، موږ
يواځې مسلمانان يو موږ تر
قوم ، حزب ، سمت ژبې او هر
څه ورتير يو خو تر اسلام نشو
تيريدلې .
دا اوس چې په حکومتي ادارو
کې د پخواني کمونست رژيم
بقايا فعاليت کوي او هر يوه
پخپل ځنگه پورې دا د اسلام
دښمنان او د ملت قا تلان
نيولي دا د مسلمانانو لپاره
ډيره دردوونکې خبره ده .
موږ نه د قوم او تنظيم حمايه کوو
او نه د سمت،مخلوط حکومت په
اسلام کې هيڅ ځای نلري .
گرانو وروڼو،زه په لنډو ټکو کې
خپل مطلب يو ځل بيا تکراروم :
موږدا غواړو چې د الله تعالی
کتاب راسره ومني موږ به يې
حکومت ومنو او تر خپلې وسې
به يې حمايه کوو .
( گلبون کوونکو ټولو د تائيد
لاسونه پورته کړل او د الله اکبر

د جامعي مشر د جامعي خادم دی په اسلام کې آمريت اومشري د باداري په معنا نه ده بلکې د خدمت په معنا ده .

په نارو سره يې ددې غوښتنو څخه خپل ملاتړ څرګند کړ)
ذاکري صاحب وويل : موږ د همدغه هدف لپاره راټول شوي يو ، نه د چا له خوافرمايش او دستور راکړی شوی او نه د کومې هوا او هوس له مخې راټول شوي يو ، نه د حزب پر بنا څوک راټول شوي اونه دقوم يا بل دنيوي خواهش پربنا ، فقط د الله تعالی ددين
د چلولو لپاره ديوې طريقې د پيداکولو لپاره راټول شوي يو ، موږ د قوم حزب او سمت
فاصلې ختمې کړيدي .
په پکتيا کې جهاد ډيره اوږده سابقه لري دلته جهاد اوفتحه دواړه اوږده سابقه لري ، په ګرد افغانستان کې له همدې پکتيا نه ددغه فرض ( جهاد) د ژوندي کولو اغاز شويدي ، دا د الله تعالی ډير لوی نعمت او افتخار دی دا دډير شکر ځای دي چې نن په خوست کې د نيږې سنتو د ژوندي کيدو لپاره د علماوو،قوماندانانو او مشرانو غونډې جوړيږي ، دلته داټولې قربانۍ چې ورکړی شوی ددين د عظمت لپاره دي دا چې د ا ښار وران شوی ، کلي بمباري شوي ، کورونډي له منځه تللي دا ټول د اسلام لپاره دي اود قيامت په ورځ به تاسې هريو ته د خپل نړيدلي کوراو ټو کر ټوکر بدن
اولادونه دا به ټول ستاسې لپاره حجت او سند وي چې ددغه دين د حفاظت لپاره مو قرباني ورکړې دي . ددغو قربانيو ثمره داده چې دا ښار اوسيمه اسلامي شوه ، ناموس محفوظ شو ، ذاکري صاحب حاضرينو ته په خطاب کې وويل :
اوس موږدوې پوښتنې لرو : له مسئولينو څخه له والي نه رانيولې تر کاتبه پورې موږته په صداقت سره د الله تعالی ددين د خدمت په کلکه وعده راکوي ترخپل وس اوطاقته به د الله پاك په کتاب او الهي قانون د حکومت کولو وعده راکوي .
له خلکو څخه به دا وعده اخلو چې پدې لار کې به د خپلو مشرانوسره تعاون کوي دوهمه پوښتنه دا چې افغانستان بيراځي خوست ندي .
جهاد په ټول عمر کې دوحالته لري ، فرض عين او فرض کفايي ، مستحب جهاد بيځې نشته ، د کمونستي رژيم بقايا چې په کومو سيمو کې په قدرت کې پاتي دي هغوی بايد خپل قدرت مسلمانانو ته وسپاري او د مسلمانانو په حضور کې د توبې اظهار وکړي.
موږ ټولوته دا دعوت ورکوو چې په ټول هيواد کې به ګرځو او حکومت به د اصلاح او اسلامي نظام د قايمولو او په اسلامي طريقه د حکومت چلولو ته رابولو اودې کارته به بې اړ باسو .
موږ به په اطراف کې دا مهم کاميابوواوبيا به په مرکز کې په يوه قوت د اسلامي نظام د چلولو لپاره دريږو ، پدې لار کې چې د هر څه ضرورت وي هغه به کوو . محترم ذاکري صاحب د خوست مجاهد اوقهرمان اولس له ټاوده هرکلي او ددغه غونډې په جوړولو کې د محترم حقاني صاحب او ولايتي اداري څخه د زړه له کومې مننه څرګنده کړه او د خير او د اسلام او وطن د خدمت په لا ر کې يې ورته د توفيق دعاوکړه .
په دغه غونډه کې ګڼو نورو علماوو هم وينا وی وکړې او د هيواد د روانو حالاتو په رابطه يې د اتحاد علما له فيصلو او اهدافو سره د خپل ملا تړ او پيوستون څرګندونه وکړه او وعده يې وکړه چې پدې لارکې هر دول هلو ځلو او قربانۍ ته حاضردي .
د غونډې په پای کې د خوست د مرانعې د رئيس مولوي پيرمحمدروحاني له خواد غونډې قطعنامه ولوستل شوه چې موږيې په همدې ګڼه کې خپروو.

بسم الله الرحمن الرحیم

# اتحاد علمای افغانستان

دیکشنبې په ورځ داسد په دریمه نیټه ۱۳۷۲ هـ ش دخوست دولایت والی او ولایتي کارکوونکو، نظامي قوماندانانو او قومي مشرانو داتحاد علماء افغانستان چې دافغانستان دزیاتو ولایاتو علماء، دمحترم مولانا عبد الله ذاکري په شمول پکښې موجود وو ددوی تر سر پرستۍ لاندې یوه لویه جلسه چې په زرګونو مجاهدینو په کښې ګډون درلود دائره کړه.

اتحاد علماء افغانستان ، نظامي قوماندانانو له غړویو څخه یو شمیر اعضاوو دموجوده دولت او حکومت شرعي خلاګانو او نقصانونو ته داشاره کولو په ترڅ کښې تفصیلي ویناوې وکړې او په پای کښې یې دلاندېنو شپږو مادو دتطبیق په کلکه غوښتنه وکړه.

۱- دافغانستان له جهادي رهبرانو څخه په کلکه غوښتنه کوو چې خپل منځي ټولې شخړې داسلامي اصولو سره سم فیصله کړي او پوره وحدت رامنځ ته کړي.

۲- ددهرې، الحادي حکومت ټول پخواني نظامي او ملکي کارکوونکي به فوراً له خپلو وظائفو څخه برطرف او پرځای به یې اهلیت او کفایت لرونکي مسلمان او مجاهد خلک ژر تر ژره مقرر کړي او په آینده کښې داسلامي دولت په چوکاټ کې مرتدان، زندیقان او دملحد رژیم بقایا هیڅ ځای نه لري.

۳- ټول غیر اسلامي قوانین دې عملاً لغوه کړي.

٤- سوچه اسلامي نظام دې دقرآن کریم، نبوي سنت او حنفي فقهي په رڼا کې تطبیق او عملي کړي.

٥- دستر او حجاب شرعي نظام دې فوراً عملي کړي.

٦-اوسنی حکومت چې دڅوارلسو کالو جهاد په نتیجه کښې منځ ته راغلی دی او جهادي مشرانو مسلمان ملت ته داسلامي نظام دچلولو وعده ورکړې وه او لاتر اوسه یې په خپلو وعدو عمل نه دی کړی. که چیرته دوی خپلې وعدې تر سره کړې او پورتنۍ یاد شوې مادې تطبیق کړي نو مونږ دپخوانیو څوارلسو کلونو په څیر ددوی پوره تائید او پیروي کوو او که چیرې داکارونه کړي نومونږ به داسلامي اصولو سره سم نه یوازې داچې تائید به یې نه کوو بلکې دشرعي اصولو په رڼا کښې به یې په ټینګه مخالفت کوو انشاء الله چې ددې مطلوبې تر سره کولو په خاطر به په نورو ولایاتو کښې خپلو جلسوته دوام ورکوو. ومن الله التوفیق

د علماوو- قوماندانانو او قومي مخورو لاسلیکونه

# تلاش های صلحجویانهٔ اتحاد علمای افغانستان

## برؤیت اسناد

دارین اواخرهیئتی مشتمل ازعلماو قوماندانان جهادی افغانستان بخاطر قطع جنگ بخصوص جنگهای اخیرتگاب تحت سرپرستی اتحادعلمای افغانستان عازم کابل گردید تاباطرفهای درگیرمذاکره نموده پیشنهادات خودرادرزمینه اتش بس وحل معضله به انهاارائه غایند.

هئیت ضمن مذاکرات خود پیشنهادات کتبی ای رانیزبه انجینراحمدشاه مسعود و انجینر حکمتیارتقدیم نمودندکه اینك متن پیشنهادات وجوابات ایشان رادرین شماره مجله نشر مینمایم .

* * *

بسم الله الرحمن الرحیم

# اتحاد علماي افغانستان

محترم استادربانی صاحب اوحکمتیارصاحب السلام علیکم ورحمته الله وبرکاته!

امابعد...جهاد داسلام د مقدس دین په خاطروشوترپوکاله زیات وخت کیږی چه ستاسو په لاس حکومت سپارل شوی او تراوسه هغه څه چه اسلام غواړی ندی عملی شوی حتی دافغانستان مسلمانان په ډیرو مشکلاتوکی راگیردی ستاسو څخه چه په حاضروخت کی د دولت او حکومت اختیاراوواك په لاس کی لری دلاندی موادوچه داتحاد علماء افغانستان او جهادی قوماندانانومشترك نظراوفیصله ده او په اوو(۷)مادو کی خلاصه شوی په کلکه سره غوښتنه کوواو له تاسوڅخه تحریری ځواب غواړو.

۱- خپل منځی اختلافات فوراًدقران اوسنت په رڼاکی حل او اعلان کړی.

۲- ټول هغه قوانین چه داسلامی شریعت خلاف او دپخوانیو څخه په میراث پاته دی لغو او باطل اعلان کړی.

۳-اسلامی قوانین داهل سنت والجماعت دحنفی فقهی په رڼاکی نافذاودچلولواعلان یی وکړی.

٤-دروس بچیان او دملحددولت بقایاداسلامی اداروڅخه که نظامی اویا ملکی وی معزول اعلان کړی او علی الفوربایدوشړل شی او داسلام بچیان یی پرځای تعین شی .

۵-داسلامی حجاب حکم فوراً اعلان او بایدعملی شی.دفرضی علم او کفاف، تعلیم اوتعلم دپاره اسلام

لاري تعين كړي دي بايد هغه مراعات شي.

٦- عام انتخابات شرعاً ممنوع دي خصوصاًچه ملل متحدپكښې دقاضي او حكم وظيفه اجراكوي او حضرت فاروق اعظم او ابی جهل په رائی كی سره مساوي وي. دالله (ج)دقانون څخه خلاف عمل دی په اسلامی افغانستان كی ځای نلري.

٧- كه چيرته جهادي مشران پورته مواد عملي او بو سوچه اسلامي حكومت جوړكړي موږبه ئي دتيروپنځلسوكالو په څير پيروي او تابعداري كوو انشاالله العزيز. او كه چيرته دا پورته مواد عملي نكړي نه يوازي داچه تائيد ئي نشو كولای بلكه دشرعي قانون سره سم به ئي مخالفت و كړو او هغه مسلمانان چه تاسوئي مشران یاست دا دهغوی غوښتنی دي چه ستاسو حضور ته پيش او دځواب په انتظار دي او هم بايد ووايو چه دغه فيصله چه په اوو مادو كی خلاصه شوی ده داسلامي مجاهد ملت دطرفه تاسو ته آخري عذر دی او كه بيا هم داذكر شوی فيصله تطبيق نشوه او تاسو د مسلمان ملت په عذر باندی غور ونه كړ كيدی شی چی ستاسو دتجريد سبب و گرزی. په احترام

بسم الله الرحمن الرحیم

# اتحاد علمای افغانستان

تاریخ: / / ۱۳۷۰ هـ ش

## برادر محترم حکمتیار صدر اعظم دولت اسلامی افغانستان

بمنظور تحلیل و بررسی وضع نابسامان فعلی کشور و جریان جنگ های دردناك وویرانی خانمانسوز و بدنام کننده برای مسلمانان و دولت اسلامی که ثمرات پر بار پانزده ساله جهاد را لحظه به لحظه به نابوده می برد، اجتماعی مسؤلانه از علما و قوماندانان و اهل خبره و سران و بزرگان اقوام یوم دوشنبه ۱۷ عقرب ۱۳۷۲ در شهر جلال آباد دایر گردید.

درحالیکه در برابر وضع جاری انزجار کامل مردم مظلوم افغانستان و مراتب تأثر و تأسف همه امت اسلامی که انصار جهاد بوده اند و در رابطه با پامال شدن حرمت و مصالح ملت مسلمان و آبرو ریزی برای همه داعیون اسلام و نهضت هاي اسلامی و خطرات مداخلات شوم دشمنان و آینده تاریك رابه پاداش پانزده ساله جهاد و قربانی بی مثال امت اسلامی به شما انتقال می دهد برای آنکه این سقوط قهقرائی از حد موجوده آن نیز جبران ناپذیر نشده باشد مواد مندرج آتی را از جناب شما خواستار است.

الف: آتش بس عاجل و فوری جنگ جاری را اعلان نمائید و قوتهای محارب در موقعیت های موجوده شان متوقف گردند.

ب: همه راه های مواصلاتی در مسیر کابل وولایات بدون قید و شرط باز گذاشته شود.

ج: برای حل مسائل متنازع فیها به هیأتی مشتمل از کبار علما و مصلحین اختیار کامل تفویض گردد تا در چوکات شریعت منور اسلام و مصالح ملت مسلمان و ارمانهای امت مسلمه به حل و فصل آن بپردازند.

[signatures]

بسم الله الرحمن الرحیم

# اتحاد علمای افغانستان

تاریخ: ۲۲/ ۸/ ۱۳۷۲ هـ ش

برادر محترم جنرال صاحب انجنیر احمد شاه مسعود!

السلام علیکم و رحمة الله و برکاته.

بمنظور تحلیل و بررسی وضع نا بسامان فعلی کشور و جریان جنگ های دردناك وویرانی خانمانسوز و بدنام کننده برای مسلمانان و دولت اسلامی که ثمرات پر بارپانزده ساله جهاد مقدس را لحظه به لحظه به نابودی می برد، اجتماعی مسؤلانه از علماء و قوماندانان، و اهل خبره و سران و بزرگان اقوان یوم دوشنبه ۱۷ عقرب ۱۳۷۲ در شهر جلال آباد دائر گردید.

در حالیکه خطرات مداخلات شوم بیگانگان و دشمنان اسلام و آینده تاریك راروز به روز به ما و شما انتقال می دهند، براي اینکه این سقوط قهقرائی ازحد موجوده، آن نیز جبران ناپذیر تر نشد، باشد مواد مندرجه آتی را از جناب شما خواستار است.

الف: آتش بس فوری و عاجل جنگ جاری را اعلان نمائید و قوتهای متحارب در موقعیت های موجوده شان متوقف گردند.

ب: همه راه های مواصلاتی در مسیر کابل وولایات بدون قید و شرط باز گذاشته شود.

ج: برای حل مسائل متنازع فیها به هیأتی مشتمل از کبار علما و مصلحین اختیار کامل تفویض گردد تا در چوکات شریعت منور اسلام و مصالح ملت مسلمان و ارمانهای امت مسلمه به حل و فصل آن بپردازند.

بااحترام

مولوی محمد ظریف

۲۲/ ۸/ ۷۲



د افغانستان اسلامي دولت
صدارت عظمی مقام

دولت اسلامی افغانستان
مقام صدارت عظمی

## شوری محترم اتحاد علماء افغانستان!

السلام علیکم و رحمة الله و برکاته!

در رابطه با مطالب مندرجه مکتوب مورخ۱۳۷۲/۸/۱۷ تان با احترام عرض می کنم:

الف: با اعطای صلاحیت عام و تام حل وفصل همه قضایای متنازع فیها مطابق شریعت اسلامی به هیأت حکم صددر صدموافقیم و اطمینان می دهیم که نسبت به فیصله های هیئت التزام خواهیم ورزید.

ب: با توقف جنگ و اعلان اور بند موافقم، با باز شدن همه راه های مواصلاتی توافق داریم.

از خداوند کریم برای خود و شما توفیق خدمت صادقانه در راه نجات کشور ازین وضع دردناک، اقامه صلح و تشکیل نظام صد در صد اسلامی مسئلت می جویم.

با احترام

برادر تان« حکمتیار»

*****************************

## فضیلت مآب ذاکری صاحب و علمای نهایت محترم

السلام علیکم و رحمة الله و برکاته!

صحت و موفقیت شما را در وظیفه ایکه در پیش گرفته اید از رب العزت خواهانم.

فرستادگان شما تشریف آوردند و روی مسائل با ایشان صحبت نمودم که ان شاء الله شما را در جریان قرار خواهند داد.

امیدوارم معضله موجود به لطف الهی و تلاش شما حل گردد.

احمد شاه مسعود

# دمطبوعاتو تاریخ ته لنده کتنه

عبدالجلیل وجدي

داسي ويل کيږي چي چينايان ، لومړني خلك وو چي يو ډول چاپ يي د لومړي ځل د پاره رايستلي ؤ ، دا خبره هم مشهوره ده چي کاغذ هم د لومړي ځل دپاره په چين کي اختراع شوی دي . همدارنګه لومړنی کتاب هم ۸٦۸ ميلادي کال کي په چين کي چاپ شوی دی دا هم ويل کيږي چي له ټولو څخه پخواني درباري جريده ( Court gazetle ) هم په چين کي راوتلی ده . که څه هم داسي وي نو شرق د مطبوعاتو په پيدايښت کي له غرب څخه ډير وړاندي ؤ . غرب د طباعت چل له چين څخه زده کړی دی . خو په خپله چين د ۹-۱۰ پيړيو په موده کي خپل دغه فن ته وده ورنکړای شوای .

اروپائيانو په (۱۵) پيړی کي دغه فن ته د وخت د شرايطو سره سمه وده ورکړه . د جرمني د مينز د ښاريو زرګر ګوتنبرګ د طباعتي حروفو جوړولو کار دومره پر مخ بو تللو چي دده دغه کار يوازی د مطبوعاتو پيلامه ونه ګرځيد بلکه د تاريخ يوه بله مبدا هم وبلله شوه.

بلاخره دي په دي کامياب شو چي د لرګيو د ټوټو په ځای فلزي حروف جوړ کړي . ددغو حروفو د پاره يي مناسب رنګ (سياهي ) هم جوړه کړه .

ګوتنبرګ په ۱٤٥٦ کال کي دانجيل ۳۰۰ نسخي چاپ کړی .

تردي وروسته د طباعت صنعت په ډيرو نورو هيوادو کي هم رواج وموند . د ايتاليي د ونيز ښار هغه ځای ؤ چي د طباعت د ښکلا مرکز و ګرځيد . دا هغه وخت ؤ چي هم حکومت او هم کليسا د طباعت صنعتګران تشويقول . ککزتون ( Cax- ton ) د انګلستان لومړني طباعتي صنعتکارؤ چي انګريزي ژبه يي په ۱٤۷٦ کي له طباعت سره آشنا کړه . تردي دمخه به کتابونه يوازي په لاتيني ژبه چاپيدل ، تر دي وروسته د نړی په تجارتي مراکزو کي طباعت ډير زيات رواج وموند . ورځپانه په (۱۷۰۲) کي په لندن کي ( The daily Courant ) په نامه راووتله .

ارو پايي استعماريونو چي له مطبوعاتو څخه يي د يوي استعماري وسيلي په حيث کار اخيست ، په نړی کي ددغه صنعت لمنه زياته خپره کړی ده .

بنجامین هریس لومړنی انګریزدی
چې امریکا ته د تګ سره سم یې
هلته په ۱۶۹۰ کال کې یوه
جریده د
Putlic Occurrence (
)په نامه راوایستله ترده
وروسته یو امریکایي جان
کمپبیل ( John Camp-
bell ) په ۱۷۰٤ کال کې یوه
امریکایي ور ځپانه چې
(Pennsylvania ) نومیده
خپره کړه . فکر کیږي چې
لومړنی روسي خپرونه په
(۱۷۰۳) کې خپره شوې وه .
پرتګالیانو په ۱۵۵۰ کې هند ته
مطبعه راوړې ده لومړی به په
دغه مطبعه باندې مذهبي
کتابونه چاپیدل ، خو چې اې
هیچي ( J.A.Hichey )
لومړنی سړی و چې په کلکته
کې یې د ( Bengal Ga-
zette ) په نامه یوه جریده په
انګریزي ژبه کې خپره کړه «۲»
زموږ د هیواد دوې لویې ژبې
هم د لومړي ځل د پاره
اروپائیانو د خپلو خاصو مذهبي
او استعماري هدفونو د پاره له
طباعت سره آشنا کړې دي . د
دري ژبې لومړنی چاپي اثر د
«داستان مسیح » په نامه د
لاتني ترجمې سره یو ځای په
(۱۶۳۹) میلادي کال کې ، په
لندن کې چاپ شوی دی . «۳»
همدارنګه د پښتو لومړنی چاپي
اثر د ګولډن ستیت دګشنري ده
چې په ۱۷۸۷ کې چاپ شوې ده
.

## دافغانستان د مطبوعاتو پرون ته یوه کتنه :

---

په افغانستان کې هم مطبوعات
او د ډله ایزې مفاهمې نورې
وروستنۍ وسیلې د مهمو
حوادثو ، بدلونونو ، اوبښتونونو
اوبحرانونو مولودې او هم
محرکې دي ، د هیواد د
مطبوعاتو پرون ته یوه لنډه
کتنه راڅرګندوي چې په
افغانستان کې مطبوعات د ۱۹
پیړۍ په زړه کې ، چې له
انګریزانو سره د افغانانو تقریبا
سل کلنه مبارزه د بشپړتابه یوې
مهمې مرحلې ته داخلیده او د
اصلاحاتو پروسه هم ددې لوې
مبارزې یوه برخه ګرځیدله مینځ
ته راوستل شول .

د افغانستان مطبوعاتو د
پیدایښت له لومړۍ ورځې څخه
ترننه پورې ، د باراني او
طوفاني ورځو د لمر په څیر خپل
پوره او ډیر روڼ مخ خلکو ته نه
دی ښودلی ، د بیلو بیلو
وختونو د بحرانونو ، اختناقونو
، جنګونو او انقلابونو ، ورېځو
، دوړو او ګردونو اوپه وروستیو
وختو کې د جنګو لمبو او دودونو
هغه یا په بشپړ ډول د خلکو له
نظره پټ کړی او یا یې پوره په
خپل اصلي شکل نه دې
وربنودلی.د هیواد د مطبوعاتو
په اسمان کې لومړنی راختلی
ستوري شمس النهار،ؤ چې له نن
څخه (۱۲٤) کاله د مخه یې
دامیر شیر علی خان د سلطنت
په دوهمه دوره (۱۸٦۸م ) کې
په خپلو خپرونو پیل کړی دی .

ځینې څیړونکي لیکي چې
ددغې یو اخبار خپرول د هغو
اصلاحاتو یوه برخه وه چې سید
جمال الدین افغاني یې امیر
شیرعلی خان ته دده د سلطنت
په لومړۍ دوره (۱۸٦٦) کې
سپارښتنه کړېده .

ویلی کیږي چې په ځینو وختو
کې به دغه جریده ، په دوو
هفتو کې یو ځل چاپیدله . د
(شمس النهار) لومړنی ګڼې ته
له کتنې څخه څرګندیږي چې
دغه جریده ، په افغانستان کې
د یوې نوې پدیدې په حیث
مجبوره شوې وه چې په خپله د
خپل ځان د پیژندنې په با ره

کې ډېرې خبرې وکړې . له مشترکینو سره د خپلو اړیکو او له هغوې ځخه د اشتراك د پیسو د تر لاسه کولو په لاروچارو رڼا واچوي . مثلاً د (اشتهار ) ، (اطلاع ضروري ) عناوین له همدې موضوع سره اړه لري .

د شمس النهار د داسې بوې خبرې ځخه چې (....سعي در این خواهد بود که خبر بازاري و پوچ هرگز در این اخبار درج نگردد.....) ځرگندېږي چې دغه اخبار د بیناري او محلي خبرونو په مقابل کې داسې یو دریځ درلود چې نني ژورنالیزم بې نه تائیدوي البته په اصطلاح د «پوچو خبرونو » د نه خپرولو په برخه کې ورسره توافق لري . د افغانستان د مطبوعاتو دغه عنعنه چې د پخوانیو ځراغونو په ځېر تر خپلو پښو لاندې ځمکه په تیاره کې ساتي له همدغه وخت ځخه پیل شوې ده .

په ټول اخبار کې بوازې په کابل کې دبې ساړې سختې واورې د اورېدو او سختې یخنې په باره کې یو خبر محلي جنبه درلوده چې د خلکو دژوندانه سره بې ډېره نږدې رابطه هم لرله - خو ځکه د بوې داسې طبیعي پیښې په باره کې وُ چې غیر عادي حالت بې د ځو کسو د وژل کېدو نتیجه ورکړې وه ، اجتماعي ارزښت بې بوازې دومره وُ چې په بیلك توت کې ؛ ځو تنو سپرلی دوو ښځو ته دنجات ورکولو په باره کې خپله انساني وظیفه سرته ور رسوله . بوه دوه داسې خبروه هم پکې راغلي دي چې د افغانستان د خلکو سره بې روحي او عقیدوي نږدېوالی درلود اوځکه د ځو کسانو د مسلمان کېدو د پېښو په باره کې وو، د شمس النهار د لومړۍ گڼې نور خبرونه د لیرې هیوادو اولیري قارو سره اړه لري د افغانستان د خلکو او حکومت د کارونو او فعالیتونو اجتماعي هځو او اجتماعي تحولاتو په باره کې چې دغه وخت پیل شوي وو خبرونه یا تبصرې نه لري .

سره ددې هم ، ددې جریدې ځو نورې گڼې چې نورو خپرونکو لوستې دي دا راښیي چې په دولتي اعلامیو او خپرونو بې علاوه خبرونه ، ادبي لیکنې ځینې نورې داسې مقالې هم خپرولې چې د لوستونکو د فکرونو په روښانه کولو او د دوی په خبرتیا کې بې تاثیره نه وې . مثلاً په خپله بوه مقاله کې بې لیکلي دي چې په افغانستان کې ، خلکو له دې امله چې پومبه بې انګلستان په ارزانه بیه اخیستله او په مقابل کې بې خپل ټوکران وربانديې په لوړه بیه خرځول ، د پومبې له کرنې ځخه ګټه نشوای کولای بلکه زیان بې لیده ، سبب بې داوُ چې دغه خلك د علم او کمال ځخه بې برخې پاتې شوې وو « ٤ » .

بوې بو ویشت کلنې تورې دورې چې په (١٢٥٩ل-١٨٨٠م ) ځخه تر (١٢٨٠ل - ١٩٠١م ) پورې بې دوام وکړ د مطبوعاتو لړ په تورو وربځو کې پټ او بیا ورك کړ . په دغه موده کې چې د امیر محمد یعقوب خان او امیر عبدالرحمن خان د سلطنت دورې دې ملت تر دوو فشارونو (انګرېزي استعمار او داخلي استبداد ) لاندې راغلی وٌ ، نو ځکه د اختناق اندازه ډېره زیاته وه .

که ځه هم د امیر عبدالرحمن

خان د پاچاهي په موده کې کابل ته یوه بله مطبعه هم راوړل شوه خو هغه مستقیماً د امیر تر کنترول لاندې راغلې وه . په خپله امیر هر څه حتی لیکوال هم ؤ دده په زمانه کې کومه جریده نه چلیده خو ځینې دیوالي خپروني لکه فرمانونه ، ابلاغیې ، اعلامیې او داسې نوري مروجې وې . مگر د کتابونو چاپولو کار نسبتاً ښه په مخ روان ؤ لکه چې دده د سلطنت په موده کې لږ اوډیر (۳۰) دوله کتابونه چاپ شوي او خپاره شوي دي .

د کوم ملت د زړه په کور کې چې د مطبوعاتو د لمر څرک لگیدلي وي ، هغه په تورو تیارو کې هم د لارې ایستلو هڅه د لاسه نه ورکوي . لکه چې د هغه وخت داستبداد په خیټه کې یو نوي غوړځنگ خپله وده پیل کوله . دا غوړځنگ د مشروطیت غوښتونکو نهضت ؤ چې د امیر حبیب الله خان د پاچاهي په موده کې یې خپل ځان را ښکاره کړ . د حبیب‌الله خان سلطنت په حقیقت کې د عبدالرحمن خان د سلطنت ادامه

وه خو یوې جزوي پیښې پکې د بیلوالي کرښه راویستله ، هغه دا ؤ چې د افغانستان د ژورنالیزم پلار محمود طرزي چې د مرحوم پوهاند حبیبي په قول په ترکیه کې یې د سید جمال الدین افغان له مځامخ خبرو څخه زیات اثرات اخیستي ؤ . په ۱۹۰۱ کال کې د امیر عبدالرحمن خان د فاتحې د ادا کولو او دا میر حبیب الله خان د جلوس د مبارکۍ د پاره کابل ته راغې . دده فضل او پوهې په امیر اغیزه وکړه او هیله یې تری وکړه چې کابل ته راستون شي . دی پخوا د امیر عبدالرحمن خان سره د ناوړه تفاهم له امله د خپلې کورنۍ سره د مشق ته تللې ؤ . کله چې محمود طرزي په ۱۹۰۲ کال کې کابل ته راغی لومړی یې د ژول ورنو داستانونه په دري واړول چې امیر یې ولولي ، خو د غو کارونو دده د لیکوالي اوسیاسي غوښتنو تنده ماته نه کړه نو د یوې جریدې د خپرولو د پاره یې خپلې هڅې پیل کړې «۵»

دده ددغو هڅو په نتیجه کې ، له شمس النهار څخه وروسته دوهمه جریده د افغانستان د سراج الاخبار په نامه د ۱۹۰٦ جنوري

په ۱۱ نیټه راووتله ، مسؤل مدیر یې د شاهي مدرسې مدرس مولوي عبدالروف خان کندهاری ؤ . د افغانستان سراج الاخبار یوازې یوه گڼه خپره شوی ده . ویل کیږي چې د درولو علت یې د بریټانیې د حکومت مداخله وه . ددغه اخبار په دریدو سره یو ځل بیا د تور تم حالت راپیدا شو خو په دې موده کې د کتابونو چاپولو لړۍ په تپه ونه دریده . د ۱۹۱۱ کال په وروستیو وختو کې هغه ډیوه چې د بلیدو سره سم یې رڼا ورکه شوه ، یو ځل بیا راپیداشوه او د سراج الاخبار افغانیه په نامه یې خپلو خپرونو ته دوام ورکړ .

داځل د تنویر او تودوخې دغه طاقت د علامه محمود طرزي په شان یو لوی سیاست پوه ادیب او مدیر شخصیت ته په لاس ورغی د افغانستان د ژورنالیزم پلار محمود طرزي اخبار په لنډ دول خو په ډیره جامعه تو گه په خپلو الفاظو کې داسې تعریف کړی دی .

( اخبار جمع خبر است که ضد آن بې خبری است ) په دې توگه دی د خبر تیا او بې خبری تر منځ تو- پیر ته اشاره لري او خبرتیا د هر چا د پاره ضروري بولي .

د سراج الاخبار د لومړني سر مقالې څخه څرګنده شوه چې ده هغه وخت د خبر لیکنې دري مهم هدفونه ( خبرول ، تعلیم ورکول او مصروف ساتل ) په مخکې اچولي وو . د افغانستان د هغه وخت په شرایطو کې دمحمود طرزي د خبر نګاری څلورمه وظیفه د استعمار ضد ملت پالنه وه .

د دوو روسي محققینو ( ماسون او رومادېن ) د لیکنو له مخې په ترکستان کې د تزاري روسیې حکمران جنرال کورا پاتکین ، د سراج الاخبار د خپرونو څخه شکایت درلود . دغه اخبار په افغانستان کې د مشروطیت غوښتونکو له ، خوا چاپېده چې نورو محکومو ولسونو ته یې هم د آزادی پیغامونه درلودل . روسان ددغه اخبار د خپرونو څخه انګریزانو ته په شکایت ورغلل او ورته یې ویل چې د افغانستان په امیر (حبیب الله خان ) فشار واچوي چې ددغه اخبار ژبه بنده کړي ، ځکه چې سراج الاخبار په خلکو کې د زادي غوښتنې جذبه راویښوي او خلك درو س او انګریز په ضد راپاروي . خو

انګریزانو په خپله هم ، له دوی څخه د مخه دا ډول شکایت درلود . دډیلي چیف کمشنر ( ) د ۱۹۱٤ کال په سپتمبر کې د جنابي اطلاعاتو سرمامور ته ولیکل چې د سراج الاخبار د خپرونې لهجې زموږ ګټې له سخت زیان سره مخامخ کړي دي باید په هند کې د هغه د خپریدو مخه ونیوله شي .

په هند کې برتانوي نایب السلطنه ( وایسرای ) د ۱۹۱٤کال د دسمبر په میا- شت کې د افغانستان له امیر څخه وغوښتل چې په سراج الاخبار کې د برېتانیا په ضد د خپرونو مخه ونیسي ، په دغه وخت کې د سیمې د شاو- خوا مطبوعاتو لکه د کلکتې حبل المتین او د ایران ( عصر آزادي ) او ( نهضت شرق ) جریدو هم د افغانستان د نهضت او مطبوعاتو پیروي کوله . «٦»

سراج الاخبار اته کاله خپور شوی دی چې د امیر حبیب- الله خان د مړینې سره سم یې نشرات پای ته رسیدلی دي او « امان افغان » د هغه ځای

نیولی دی . په دې دوره کې د خپرونو بل مهم ګام د مسلکي خپرونو خپرېدل وو چې د سراج الاخبار افغانیه تر څنګ د افغاني ماشومانو له پاره د سراج ا طفال په نوم یوه جریده خپره شوه .

د خپلواکۍ له تر لاسه کولو وروسته د هیواد د هر اړ خیزپر- مختګ لپاره د پروګرام د طرحې په ترځ کې د خپرولو د پراختیا او پرمختګ هڅه هم وشوه . په لومړی مرحله‌کې د خپرونو ژبه د هیواد د آزدی ساتلو او د پرمختګ لپاره ه ګومارله شوه او په بله مرحله کې د خپرونو د غږ رسیدلو او رسا کیدو لپاره پراختیایي او پرمختیایي ګامونه پورته شول . د خپرونو وسعت اوتنوع ته پاملرنه وشوه او د هیواد ګوټ ګوټ ته د هغه د رسیدلو هڅې پیل شوی .

د مرکزي اخبار «امان افغان » تر خپریدو لږ وروسته ولایتي خپروني هم پیل شوي . اتحاد مشرقي (۱۲۹۸ش) په ننګرهار کې ، الغازي (۱۳۰۰ش ) په پکتیا کې ، اتفاق اسلام په هرات کې ، طلوع افغان (۱۳۰۰ش ) په کندهار کې ، بیدار (۱۳۰۰ش ) په مزارشریف کې

خپلې خپرونې پیل کړې . همدا رنګه اتحاد ، ستاره افغان اصلاح له هغو خپرونو څخه وې چې په ولایاتو کې خپرېدلې .

د « افغان » په نامه د افغانستان لومړنۍ ورځپاڼه د لومړي ځل د پاره په مرکز کې راووتله . همدارنګه ارشاد النسوان ( د ښځو د پاره اختصاصي جریده ) ابلاغ (د-یوالي قانون خپروونکې جریده ) او د ( حقیقت ) جریده یوه په بله پسې نشر شوې ، ورسره د معرف معارف ، مجموعه عسکریه ، آئینه عرفان مجموعه صحیه او پښتون ږغ مجلې خپرې شوې .

د افغانستان لومړني اساسي نظامنامې ( اساسي قانون) چې په ۱۳۰۱ المریز کال کې تسوید او تصویب شوه په خپله (۱۱) ماده کې د افغانستان د خلکو له پاره د فکر او بیان آزادي تضمین کړه او بیا په ۱۳۰۳ کال کې د افغانستان د مطبوعاتو د لومړنۍ نظامنامې په خپرېدو سره عملاً د ثروت ، انیس ، نسیم سحر او نوروز آزادې جریدې رامنځ ته شوې . همدا وخت د مطبوعاتو لومړنی ریاست جوړ شو او همدا وخت لومړنی آزاده مطبو عاتي محاکمه وشوه . «۷»

په افغانستان کې د مطبو-عاتو ددې بېړنۍ او چټکې ودې له اوج ته رسیدو سره یو ناځاپه د سقوي دورې دارو دوړ له امله مطبو عات له سقوط او رکود سره مخامخ شول خو بیا هم رژیم ته د تبلیغ د اړتیا له امله په تپه ونه درېدل . عاجل فرامین او ابلاغیې نشر شوې او ورسره د هیو اد مرکزي اخبار « امان افغان » د « حبیب الاسلام » په نامه خپور شو . همدارنګه د کندهار د «طلوع افغان » نوم په « مؤید الاسلام » و ګرځول شو ، په خان آباد کې د « اصلاح » پر ځای « نهضت الحبیب » او په مزار شریف کې د « اتحاد الاسلام » بیا « بیدار » پر ځای « رهبر اسلام » جرید ی خپرې شوې .

« الایمان » د یوې دیني جریدې په توګه په ننګرهار کې نشر شوه او « الاصلاح » او « اتحاد افغان » په پکتیا کې د نادر خان او شاه محمود خان له خوا چې دا وخت له سقویانو سره په جنګ وو خپاره شول . په همدې توګه دا وخت څو نورې جریدې « غیرت اسلام » د « کورغم » او «سورسات » په نومونو په کندهار او ننګرهار کې خپرېدلې ، همدا راز دا وخت د « افغانستان » په نوم یوه جریده له لاهوره خپرېده چې د هیواد خواخوږو پکې کار کاوه په نادري دوره کې په سرکاري سطحه اکثره مړې شوې خپرونې را ژوندۍ او ځینې نوې خپرونې رامنځ ته شوې . په کابل کې د کابل مجله ،کابل کالنۍ ،اقتصاد مجله ، حی علی-الفلاح مجله په کندهار کې پښتو او په هرات کې د هرات ادبي مجله او د هرات د بلدیې مجله نوې خپرې شوې .

په ۱۳۲۹ کال په افغانستان کې دمطبوعاتو د دوهم قانون په نافذېدلو سره ، د سیاسي تنفس د پاره نسبي زمینه برابره شوه او مطبو عاتو د ویښ زلمیانو تحریک ته په انعکاس ورکولو سره د خپلې ودې او پرمختګ په لاره کې یو بل مهم ګام او چټ کړ .

داوخت تراماني دورې ورروسته ، د آزادو مطبوعاتو دوهمه څپه پیل شوه او په کابل

کې د « انګار » ، « وطن » ، « ندای خلق » ، «اولس » ، «نیلاب » او « آئینه » جریدې خپرې شوې ، د کابل انتخابي ښاروالی د « پامیر » او میمنی ښاروالي د « اتم » په نامه جریدې راوایستی او د دوی ترڅنګه « الفبا » ته په کندهار « صدای ملت » ته په هرات او پیام افغان ته په کابل کې د نشر اجازه ورکړ شوې وه .

په هیواد کې د دموکراسی د لسیزې ( ۱۳٤۲ -۱۳۵۲ ) په پیل کیدلو سره حتیٰ د سرکاري خپرونو لهجه هم بدله شوه اوپه لومړی مرحله کې چې لا آزادي جریدې نه وې خپرې شوې ، په اصلاح ، انیس او هیواد کې هم د انتقادي مقالو خپریدل پیل شول او د مطبوعاتو د یو کیفي بدلون له پاره زمینه برابره شوه . په دغه دوره کې یو زیات شمیر شخصي اوحزبي جریدې راووتې لکه :
« وحدت » ، پیام امروز» ، «افغان ملت » ، « خلق » ، «مردم » ، « پیام وجدان » ، «مساوات » ، « پرچم » ، «ترجمان » ، « سبا » ، « شعله جاوید» ، « صدای عوام » ، « کاروان » ، « خیبر » ، « کمك » ، « پروانه » ، « هدف » ، « جبهه ملي » ، «سپیده دم » ، « ګهیځ » ، «پکتیکا » ، « افغان اولس » ، «اتحاد ملي » ، « روزګار » ، «ملت » ، « افغان » ، « رمز-صحت » ، « شوخك » ، « آزادي » ، «آئینه روز» ، « دارو درمل » ، « میهن » ، « برهان » ، «افکار نو » ، « پیکار » او د « ندای حق » جریدې خپرې شوې .

ددموکراسي د لسیزی آزادو مطبوعاتو د ویښ زلمیانو د دورې په څیر په ډیره سمبو لیکه ژبه خبرې نه کولې لهجه یې څه ناڅه روښانه او واضح وه . دې جریدو کولای شوای چې د خپلو امکاناتو سره سم حقایق رالوڅ کړي ، د وخت په سیاسي او فکري جریانونو رڼا واچوي ، د زړونو خبرې رابر سیره کړی او پټې شوې عقدې رالوڅې کړی ورسره یې دوارودو شویو ایډیا-لوژیو د تخمونو د کرلو د پاره هم زمینه برابره کړه .

د ۱۳۵۲ کال د چونګاښ په ۲٦ د جمهوریت د کودتا په کیدلو سره ددیموکراسي د لسیزې پانه ونغښتله شوه . شخصي او آزادې خپرونې ټولې بندې شوې ، رسمي خپرونې اکثره په خپل حال پاتې شوې خو د کیفیت له اړخه د خپرونو ژبه او لهجه بدله شوه او حتی ټولی سر-کاري خپرونې هم د دولتي مطابعو د مسؤول مدیریت له خوا کنتل کیدې او په خلاص مټ سانسور پکې کیده . دا سانسور هم یوازي د انتقادي مطالبو د مخ نیوي لپاره ؤ خو چپي افکار خصوصاً د جمهوریت په لومړیو څو کلونو کې په خلاص مټ سرکاري خپرونو او رادیو ته لاره وموندله او کمونیستو لیکوالو پکې ځای ونیو .

د جمهوریت په دوره کې د هیواد د مرکزي اخبار نوم «جمهوریت » شو چې د « اصلاح » د ورځپاڼې ځای یې ونیو او ورسره د جمهوریت په نامه پښتو ، دري ، انګلیسي او عربي مجلې هم خپرې شوې .

د ثور د خونړې کودتا له کیدو سره د هیواد دنورو شته-منیو تر څنګ نشراتې او خبرني وسایل هم ټول د دوی لاس ته ولویدل او له هماغه لومړي ورځې نه یې د خپلو کمونستي اهدافو لپاره استخدام کړل . دوی د نورو ورانیو

ترخنګ د کلتور او مطبوعاتو په ساحه کې هڅه کوله چې تخریب یې کړي ، کمو نستي اهداف پکې ځای کړي او روسي بڼه ورکړي . د کمو نستانو مطبو عاتو درې بهې درلودې :

۱- د خلقیانو په وخت کې د کمونستي کولو پروسه : په دې دوره کې د «جمهوریت » ورځپانه د « ثورانقلاب » په ورځپانه واړوله شوه . د هیواد نوری عامې علمې او مسلکې خپرونې یې هم په کمونستې رنګ ولړلې او ټول علمې مسایل یې د مارکسیزم سره څنګ ته واچول .

۲- د روسي کولو پروسه : د ۱۳۵۸ کال د مرغومې په ٦ نیټه ، افغانستان ته د روسي لښکرو په راتلو سره روسانو د خلقیانو ځای پرچمیانو ته وسپاره په ټولو ساحو کې یې د خپلو ګټو مشاورینو په وسیله کارونه پیل کړل او پرچمي جمهور رئیس ، صدراعظم او وزیران او نور تش په نامه وو .

روسانو په لومړی مرحله کې د ګوند او حکومت چارې سره بیلې کړلې ، د « ثورانقلاب » مرکزي ورځپانه یې د روسیې د پراودا په تقلید او ترجمه د « حقیقت ....» په نوم وګرځوله او دګوند د نشراتي اورګان په توګه یې نشر کړه . « هیواد » ورځپانه یې د حکومت د اورګان په توګه ، « انیس » یې د پلار وطنې جبهې د اورګان په توګه « ژوندون » یې د لیکوالو د اتحادیې ، « پیش آهنګ » د ماشومانو د سازمان ، « درفش جوانان » یې د ځوانانو د سازمان « زنان افغانستان » یې د ښځو د سازمان ، « کار» یې دصنفې اتحادیو ، « هنر » یې د هنر مندانو د اتحادیې او « سباوون » یې د ژورنالیستانو د اتحادیې له خوا نشر کړل او « حقیقت سرباز » یې دوزارت دفاع له خوا خپور کړ .

کمونستانو قومونو ته چې دوې ورته ملیتونه وایې د حقوقو ورکولو په نامه د ازبکو ، ترکمنو او بلوڅو لپاره د « یلدوز» ، ګوراش » او« سوب» په نومونو جریدې د دوی په ژبو خپرې کړې خو په حقیقت کې یې دا کار د افغانستان د ورونو قومونو د سره اچولو ، د دوې ترمنځ ددښمنیو د راپیدا کولو او د بیلتون راوستلو لپاره د خپل شیکیلاګي پلان له مخې کاوه ، همدا راز د پښتنو قبایلو لپاره یې د « جرګه » په نامه مجله نشر کړه او غوښتل یې چې د جرګې تر عنعنوي نامه لاندې دوې د کمو نیزم په لومه کې را ښکیل کړي .

کمونیستانو ، مستقیماً روسي خپرونې هم په کابل کې نشر کړې . د « ځلمیان » او « جوانان » جریدې چې د روسیې کلتوري مرکز خپرولې . دغه مرکز د کمو نیزم ایډیالوژیکه مجله هم د « سولې ، ترقي ، او سوسیالیزم » په نامه په کابل کې خپره کړه . « پیوستون » او « همبستګې » او « دوستي » نوري خپرونې دې چې دوی د خلکو د ماغزو مینځلو د پاره خپرولې .

۳- د عادي کولو پروسه : په افغانستان کې دکمونیزم او روسانو د ماتې خوړلو په نتیجه کې د کمونستانو وروستني جمهور رئیس نجیب د ملي روغې او پخلاینې سیاست ته لاس وغزاوه . له یوې خوایې د فرمایشي حزبونو د جوړولو له پاره اجازه ورکړه چې خپل نشراتي اورګانونه هم ولري او له بلې خوا یې هڅه وکړه چې دولتي خپرونو ته ملي بڼه ورکړي . او دکمونستي کولو او

روسي کولو پر ځای يې د عادي کولو لاره ونيوله . په دې سلسله کې يې يو شمير ګومارل شويو کسانو ته اجازه ورکړه چې په اصطلاح آزادې جريدې خپرې کړي او ګومارل شوي حزبونه نشراتي اورګانونه ولري . ددې ډول آزادو جريدو په لړ کې د « پلوشه » ، « يا حق » او « نګاه » په نوم جريدې خپرې شولې . د فرمايشي حزبونو په لړ کې د افغانستان د خلکو اسلامي حزب د « الاسلام » د افغانستان د زحمتکشانو انقلابي سازمان چې دستمي کمو نستانو يوه ډله ده د «ميهن » او بزګرانو د عدالت ګوند د «عدالت » په نامه جريدې خپرې کړې . د سرکاري خپرونو په لهجه او کړو وړو کې هم بدلون راغی .

د حقيقت انقلاب ثور » بدنامه خپرونه يې بنده او د هغه پر ځای يې د « پيام » په نوم خپرونه راوايسته . د « اخبار هفته » په نوم بې ظاهراً يوه آزاده جريده نشرکړه چې په روسيې ، نجيب او حکومت يې هم انتقادونه کول خو په حقيقت کې د اجريده د خاد د رسوا او بدنامي اداري له خوا اداره او خپريدله .

زمونږ د نن د مطبوعاتو بډايي ارخ د مقاومت او جهاد خپرونې دي چې د کمو نستانو له کودتا او تيرې سره جوخت پيل شوي او د وسله وال جهاد تر څنګ يې قلموال جهاد او مقاومت پيل کړ . په لومړی مرحله کې جهادي خپرونې د پوسترونو ، ابلاغيو ، رسالو او جريدو په بڼه په يو ډير محدود چوکاټ کې پيل شوی . د جهادي خپرونو لومړی شروع په پيښور کې وه ، بيا په ايران هند ، اروپا ، امريکا او نوری نړی کې هم پيل شوی .

« شهادت » د انجنير حکمتيار د حزب اسلامی نشراتی اورګان او « مجاهد » د جمعيت اسلامی افغانستان نشراتی اورګان د جهاد لومړنی خپرونی وی چې په ۱۳۵۷ کال په پيښور کی نشر شوی . « صف » په اروپا کی د افغانی محصلانو د اسلامی ټولنی خپرونه وه چی په ۱۳۵۷ کال کی راووته اوهم سوم عقرب د مقاومت لومړی خپرونه وه چې ماويستو محصلينو په اروپاکې په ۱۳۵۷ کال خپره کړه . د جهاد په جريان کې د خپرونو شمير کال په کال زيات شوی دی .

په عمومی ډول څومره خپرونی چی د افغانستان د پرون په (۱۱۰) کلنه دوره کی شوی ترهغه زياتی خپرونی د جهاد په لس کلنه دوره کی شوی دي . د يوی هغی احصائيی له مخی چی بنا غلی رقيع (۱٦ )کاله مخکی په افغانستان کی جوړه کړی وه زمونږ د ټولو مهالنيو خپرونو شميره ( ۱۹٦ ) عنوانونو ته رسيدله خو هغه احصائيه چی ( ٦ ) کاله د مخه بنا غلی ننګيال د جهادي مهالنيو خپرونو په برخه کې جوړه کړې د جهادي خپرونو شمير ( ۲۳٦ ) عنوانو ته رسيده ، په دواړو احصائيو کی يوازی هغه خپرونی راغلی چی په پښتو او دري ژبو خپری شوی وی . د نورو ژبو خپرونی چی يا هغه وخت يا دا وخت شوی په دی احصائيه کی نه دي نيول شوی .

راډيو په افغانستان کې :

د امان الله خان په وخت کی ، چی د هيواد د صنعتی کيدلو لپاره لومړنی بيړنی

هڅې روانې وې . نو د مطبوعاتو د پراختیا او پرمختګ په څنګ کې راډیويي نشراتو ته هم پاملرنه وشوه .
لومړی پلا د راډیو دوه کوچنۍ دستګاوې د افغانستان د هغه وخت د حکومت له خوا راونیولې شوې چې بیا یې په ۱۳۰۶ کال کې په کابل کې نصب شوه او په نظر کې وه چې بله یې په کندهار کې فعاله شي . په هغه وخت کې د راډیو داسې یوه ۲۰۰ واټه دستګاه په زیاترو اسیایي هیوادونو کې نه وه فعاله شوې . لومړی ځل د راډیويي نشراتو د خپریدو توان ډیر زیات نه وو . د دستګاه له نصب کیدو څخه د مخه ( ۳۰ ) بټوې لرونکي راډیوګانې په خلکو وویشلې شوې . د راډیو لومړنۍ دستګاه په لندنۍ کوټۍ ( کوټۍ لندنۍ ) کې نصب او انتن یې هم د دې کوټۍ په چمن کې ودرول شو . د راډیو اداره په داخله وزارت پورې تړل شوې وه او ورځنۍ دوه ساعته خپرونې یې لرلې .
د امانی دورې له پای ته رسیدلو او په افغانستان کې د اغتشاش له راتلو وروسته راډیويي خپرونې هم په ټپه ودریدې په دغه وخت کې د خبرونو او موسیقۍ د پاره پاریدلی تلوسه به د برتانوي هند ، آلمان او روسیې او نورو ځایونو راډیوګانو ته په غوږ نیولو سره تسکینیدله . په دغه وخت کې په افغانستان کې د انګلستان ، امریکې ، ایټالیې او روسیې له خوا جوړې شوې راډیوګانې د افغاني سوداګرو له خوا وارد کیدلې او په بازارونو کې خرڅیدلې . په اردو ژبه د هندوستان خبرونو او هندي موسیقۍ په افغانستان کې زیات اوریدونکي درلودل .
په اساسي ډول د راډیو د خپرونو د بیا پیل کولو د پاره مقدماتي کارونه له ۱۳۱٤ څخه پیل شول . د منځنۍ څپې د یوې راډیوي دستګاه د رانیولو او نصبولو یو تړون د آلمان سره لاسلیک شو . همدارنګه حکومت له ټولو نایب الحکومه ګانو څخه وغوښتل چې د خپلو مربوطو سیمو څخه شاعران ، ادیبان ، هنرمندان او د ذوق خاوندان ورمعرفي کړي . په کابل کې د راډیو نشراتو له پاره یوه فنی اداره او یو تخنیکي کورس جوړ شو د دستګاه د راوړلو او نصبولو کارونه تر ۱۳۱۹ کال پورې بشپړ شول د راډیو اساسي خپرونې د ۱۳۲۰ کال د حمل په لومړۍ نیټه ، د هغه وخت د صدارت د لومړي مرستیال او د پوهنې د وزیر سردار محمد نعیم په پښتو وینا پیل شوې .
تر دې وروسته د راډیو په تخنیکي اونشراتي ساحو کې ډیرې پر مختیا وې مخصوسیدلې ، د پرمختیا دې سلسلې با لاخره خپل ځان د هیواد د انکشافي پلانونو سره ونښلاوه . تودې چې د کابل په انصاري واټ کې د راډیو افغانستان نوې مجهزه او عصري ودانۍ پرانستل شوه او د هیواد د دوهم پرمختیایي پلان په اساس د راډیو افغانستان تخنیکي اونشراتي امکانات پر اخ شول اوتردې وروسته هڅه داوه چې منطقوي لیږدوونکي اخلې بشپړې شي .
په ۱۳٤٥ کال کې راډیو دورځې ١٤ ساعته نشرات لرل په دغه وخت کې په بهرنیو خپرونو کې په روسي اوجرمني

ژبو هم خپروني پيل شوي وي .
په ۱۳٤٦ کال کې يې خپروني تر ۱۵ ساعتو ورسيدې او ۷۵ جلا جلا خپروني يې لرلې .

د داود خان له کودتا سره ( ۱۳۵۲ سرطان ) د راډيو افغانستان په خپرونو کې څه ډېر زيات محسوس بدلونونه رامنځ ته نه شول .

د ثورد کودتا سره سم راډيو زمونږ د ملت او شاوخوا ګاونډيو هيوادو په ضد د تبليغاتي جګړې يوه لويه اډه وګرځول شوه . د راډيو بشپړ کنترول ګوندیانو واخيست . د خپرونو محتويات يې د خپل ګوند د کمونستي مرامونو په اساس وټاکل . په راډيو کې يې د خپلو فکري او ګوندي غوښتنو په بنسټ ځيني نوې خپروني رامنځ ته کړې . په دغه وخت کې په راډيو کې روسي اثرات اوتاثيرات زيات شول . د خپلو تبليغاتو د پاره يې د ورونو قومونو له ژبو څخه هم زياته استفاده وکړه .

له روسي يرغل وروسته د راډيو- يي امکاناتو د لازياتو پراخيدلو هڅه وشوه . دا کار ددې لپاره وشو چې يو خو خپل تبليغات هم د افغانستان خلکو او هم نړيوالوته ورسولې شي او له بلې خوا دا چې د راډيويي خپرونو شمير او امواج او فريکونسي دومره متنوع کړي چې خلك د نورې نړۍ راډيو- ګانې اونه وريدلې شي .
په همدې منظور په بيلا بيلو وختونو کې د راډيو- يي نشراتو او حتی جلاجلا راډيو ګانو د رامنځ ته کيدلو لپاره هڅې وشوې . په جلا ل- آباد ، کندهار ، هرات ، بلخ ، ګرديز ، خوست او د ځينو نورو ولايتونو په مرکزو کې محلي ولايتي راډيو ګانې فعالې شوې او دهغوې د تبليغاتو په خدمت کې ولويدې او دنشراتو حجم ډېر زيات شو . په وروستيو کلونو کې د شرقي المان په مالي او تخنيکي مرسته راډيو افغانستان دمرکزي ستو ډيو ګانو د پراخيدلو او نويو ستوډيوګانو د جوړولو کار د راډيو تلويزيون د ودانۍ غربي اړخ ته پيل شوې ؤ «۸»

## تلويزيون په افغانستان کې:

د ۱۳۵۱ کال په وروستيو مياشتو کې هغه وخت چې اروابناد محمد موسیٰ شفيق د شاهي رژيم يو پوه او فعال صدراعظم ؤ او د ژورناليزم يو استاد ښاغلي صباح الدين کشکي د اطلاعات او کلتور د وزارت چاري پرمخ بيولې ، په افغانستان کې د تلويزيون د جوړيدلو پلان تصويب شو .
د کابل په ښار کې د تلويزيون مرکزي ستډيو د راډيو افغانستان په انګړ کې د مرحوم داود خان د جمهوري رياست په موده کې د جاپان د هيواد په تخنيکي او علمي مرستو جوړه شوه . دغه تلويزيون په لومړي سرکې د تعليمي خپرونو اوصحي پروګرامونو له پاره چې دورځې په له يو نيم تر دوو ساعتونو پورې خپروني کوي جوړ شوی ؤ چې په امتحاني ډول يې د ۱۳۵٦ کال د حوت د مياشتې په ۲۵ نيټه خپروني پيل کړې . په نظر کې ؤ چې د ۱۳۵۷ کال د سر طان په ۲٦ نه پرانستل کيږي . مګر له بده مرغه داسې ونه شول

، د افغانستان تلویزیون د پرانستل کیدو نه د مخه د روسانو او هغوی د نوکرانو په خدمت کې ولوید ، د افکارو د تعمیر په ځای د افکارو د تخریب د پاره وسیله وګرځید .

دغه تلویزیون د جاپان په مرسته په (پال سکیم )ډول جوړشوی ؤ چې د نړی له عصري دستګاوو څخه شمیرل کیږي او په سیمه کې ساري نه لري .

د ۱۳٦٦کال په پیل کې د مسکو د تلویزیون یو دایر کټر راوستل شو چې د کابل د تلویزیون خپروني په روسي تیپ برابرې کړي . د راډیو تلویزیون روسي مشاورینو په مستقیم ډول د تلویزیوني خپرونو په ایډیټ کې برخه اخیستله . ان تردې چې د مرکزي کمیټې روسي مشاورینو په مستقیمه توګه خپل امرونه صادرول .

د افغانستان تلویزیون د جاپان په مرسته په پال سکیم ډول جوړشوې و چې د نړی له عصري د ستګاوو څخه شمیرل کیده او په سیمه کې یې ساري نه درلود . روسانو غوښتل چې

د سیمې له دې مهمې تلویزیونې د ستګاه څخه د خپلو تبلیغاتو د پاره د نړیوالې اډې په توګه کار واخلي . نو دوې ستري مخابراتي د ستګاوې یې د راډیو تلویزیون په انګړ کې ودرولې چې یوه یې د مارس دستګاه اوبله یې د شمشاد دستګاه وه . د مسکو د تلویزیون خپرونې اوهغه څه چې روسانو آسیایي سیمو ته خپرولې ، د مارس ددستګاه په وسیله له مصنوعي سپوږمي ( انترسپوتنیک ) څخه اخیستل کیدې او خپریدې . روسانو په دې ډول غوښتل په افغانستان کې د نورو ګاونډیو هیوادونو له تلویزیوني خپرونو څخه مخ نیوې وکړي . ددې دستګاه زور او قوت زیات نه ؤ چې هغه د افغانستان څخه وایستل شوه . ویل کیدل چې هغه کوم افریقایي هیواد ته واستول شوه ، پرځای یې یوه بله د ستګاه چې ( لوتوس ) نومیده او رژیم د شمشاد نوم وربانډي کیښود په ۱۳٦۱ کې له روسیې څخه راوړل شوه . دغې ډیرې مجهزې د ستګاه څو کانالونه درلودل چې د تلویزیوني خپرونو څخه

علاوه په مخابراتي او استخباراتي چاروکې هم ورڅخه استفاده کیدله . د (شمشاد) دستګاه کولای شول چې د کابل د تلویزیون له مرکزي ستډیو نه د نړې هرې تلویزیوني شبکې ته د انترسپوتنیک له لارې مواد ورکړي او له نورشبکو څخه هم اطلاعات تر لاسه کړي . ددې دستګاه ټول ښه امکانات یوازې او یوازې د شوروي او کمونیزم د تبلیغاتو د پاره وقف شوې وو.

له دې امله چې تلویزیون د کمونستې او روسې پروپاګندې د خپرولو ډیره ښه وسیله وه نو د تلویزیوني شبکې لمنه د هیواد نورو ولایاتو ته هم وغځیدله لکه چې تر ۱۳٦٦ کال پورې د کابل په ګډون ، په بدخشان ، بغلان ، بلخ ، جوزجان ، هرات ، فراه ، هلمند ، کندهار ، خوست ، ګردیز ، غزنې ، ننګرهار او کنړونو کې هم د تلویزیون خپروني پیل شوې وې .

د افغانستان تلویزیون شبکه په خپله د افغاستان د خلکو د پاره نه د سالمې خبرتیا او نه د سالمې تفریح وسیله وه،لوې هدف یې د دښمن په ګټه تبلیغات

کول او د افغانستان د خلکو د عامه افکارو تخریبول وو. ددې دستگاه او د هغې د کارکوونکو په ضد د خلکو کوکه ورځ په ورځ زیاتیدله . د کابل ښاریانو د راډیو تلویزیون د دولتي کمیټې د رئیس ، د تلویزیون د ریس ، مرستیال او نورو مسؤلینو د تیلفونمبرونه اخستې وو . کله به چې خپروني پیل شوې . نو دکنځلو تیلفو نونه به هم ورسره سم پیل شول . د یو مسؤل د خولې خبره ده چې « من بعد از شش بجه در تیلفون مستقیم هیچ گپ نمي زنم ، زیرا که غیر از دو زدن چیزي دیگري نیست » دغه راز د تلویزیون د هغه وخت رئیس عبدالله شادان به ویل چې « هر شب من بیش از صد ها بار دشنام مي شنوم لاکن چه کنیم چاره چیست ؟» .

د تلویزیون کمونستي کارکوونکو یو بل ته یوازې په یوه خبره تسلي ورکوله اوهغه داوه : « موږ د مخالفینو گولي منلي دي خبرې خو یو عادي کاردی.» « ۹ »

ماخذونه :

۱-

G.K Puri (MA English and pol science) Journalism comption Review PVT 604/Prathat kiran Rajendra place new Delhi-110008

۲- همدغه منبع

۳- پوهاند دکتور احمد جاوید پښتو چاپي آثار ( په وروستیو دوو پیړیو کې د پښتو چاپي آثارو د مقالو مجموعه ) ۲۳۰ مخ د کابل چاپ عقرب ۱۳۵۷

٤- محمد کاظم آهنگ او داکتر محمدظاهر صدیق - مطبوعاتو ته یوه کتنه ( د افغانستان د مطبوعاتو د ورځې په ویاړ یوه خپرونه ) د ۱۳۵۱ کال د وږي ۱٦ کابل . افغانستان

٥- همدغه منبع

٦- مرحوم پوهاند حبیبي - نهضت مشروطیت خواهي در افغانستان .

۷- حبیب الله رفیع افغاني مهالني خپروني په پرون ، نن اوسبا کې . د افغانستان په راتلونکې ټولنه کې د ټولنیزو اړیکو د وسایلو سیمینار د (۱۳۷۰کال د غويي دمیاشتي له ۲۱- ٤٤ پورې ) اسلام آباد کې د افغانستان د جهاد ثقافتي شورا - په دې لیکنه کې د ښاغلي رفیع له څیړنې څخه زیاته استفاده شوې ده

۸- زرین انځور - په افغانستان کې د راډیو تاریخچه او دڅور تر کودتا وروسته د راډیو انکشافات او انحرافات ( په همدغه سیمینار کې لوستل شوې مقاله )

۹- میا آروال - په افغانستان کې د تلویزیون رامنځ ته کیدل او دمخه د روسي کولو پړ وسه - خپلواکي شپږم کال ، پنځمه گنه ۱۳۷۰هـ ش (۷۱- ۹۰ ) مخونه .

# کډې باریږي

محمد عارف (غروال)

هغه ورځ چې دمهاجرینو دیو کمپ تر څنګ تیریدم، ومې لیدل چې لارې دخیمو په مخکې ولاړې دي او دیو شمیر کورونو لوی واړه په ډیره بیړه لګیادی دخپلو کورونو سامان پکې باروي، دماشومانو شورماشور او دلویانو دهله ژر شی او آزونو زه وهځولم چې لږ ور نژدې شم او ددوی دکډو دبارولو په راز ځان خبر کړم.

چې لږ ور نژدې شوم ومې کتل چې دځو تنوپه مخونو نرې نرې اوښکې روانې دي او په داسې حال کې چې دکور دسامان په راغونډولو بوخت وو له نریو اوښکو سره جوخت یې په شونډو مسکاهم خوره وه، زه دې حالت نور هم حیران کړم. نو مې له یوتن څخه دکډو دبارولو دسبب پوښتنه وکړه، هغه وویل: وطن ته ځو! ډوطن ته ځو ډکلمې په اوریدلو سره زما په سترګو کې هم اوښکې راغلې ځکه له یوې خوا وطن ته دتګ خوشالي او له بلې خوا په وطن کې بې هدفه او بې نتیجې جنګونه دواړه حالتونه راته مخې ته مجسم شول، نو مې له ځانه سره وویل: کاشکې خدایه! په وطن کې مو امن وای، استقرار وای او دمسلمانانو ترمنځ ورورې او محبت وای، ترڅو بیرته ستنیدونکې هیواد وال په پوره ډاډ او اطمینان خپلو کورونو ته ستانه شوی وای، خو له دې سره سره بیاهم دکډو دبارولو په وخت کې له ډیرې خوشحالۍ نه ددوی پرمخ اوښکې روانې دي، نوکه دغه مشکلات یې په مخکې نه وای بیا به نو دغه خوشالي خامخا خو برابره زیاته وای.

زه له دوی څخه راستون شوم، قلم او کاغذ مې را واخیست او دکډو بارولو اوپه هیواد کې دامن او استقرار دنشتوالي حالت مې دیوه سروکې په بڼه انځور کړ چې دادی ددرنو لوستونکو مخې ته یې ږدم.

له خوشالۍ نه اوښکې مړې په مخ بهیږي وطن ته ځینه
کډې باریږي - وطن ته ځینه
زما دګل په شان وطن دی وطن ته ځینه
دګل په شان وطن مې وران شو لا ورانیږي - وطن ته ځینه
کډې باریږي - وطن ته ځینه
ماوې ارمان به مې پوره شي - وطن ته ځینه
خو ارمانونه مې ترخاورو لاند ی کیږي - وطن ته ځینه
کډې باریږي - وطن ته ځینه
خدایه داځه کاني را وشوی وطن ته ځینه
په شخصي ګټه ورور له ورور سره جنګیږي - وطن ته ځینه
کډې باریږي وطن ته ځینه
پروني ورونه دښمنان شول وطن ته ځینه
خلقي، پرچم ورته له ورایه خوشالیږي - وطن ته ځینه

کډې باریږي - وطن ته ځینه
دافغانانو دې خدای مل شي - وطن ته ځینه
پنځلس کاله پرې بمونه راوریږي - وطن ته ځینه
کډې باریږي - وطن ته ځینه
ماسره نور غمونه نشته - وطن ته ځینه
دوطن غم دې چې وجود مې پرې سوزیږي - وطن ته ځینه
کډې باریږي - وطن ته ځینه
غروال دغره په څوکه ناست دی - وطن ته ځینه
دګران وطن ویجاړ حالت باندې ژړیږي - وطن ته ځینه
کډې باریږي - وطن ته ځینه

# کوڅه ډب

محترم مولوی محمد یونس خالص

شیطان ترینه جوړیږي چې انسان شي کوڅه ډب
یاران شي ترې بیزاره چې یاران شي کوڅه ډب

نن دلته سبا هلته کله سم او کله کوږ شي
سم جوړ شي منافق چې مسلمان شي کوڅه ډب

نو کر داستعمار شي خپل ملت په نورو پلوري
دکوم هیواد چې، پوه ملي ځوانان شي کوڅه ډب

وباشي قام کې گډه دژوندون بیړۍ چپه شي
دچاچې ملایان او واعظان شي کوڅه ډب

وطن ساتلی نشي په چوکۍ چې کړي جنگونه
گیدړې ترینه سنې دی چې زمریان شی کوڅه ډب

دهری کوڅې سپی شي دهرچا ډول ته به ناڅي
ځان پلورې په پیسو چې ماموران شي کوڅه ډب

پرون یې دخلقیانو نن زموږه مداحي کړي
چې کله شرمیدلي شاعران شي کوڅه ډب

وجدان ترې کډه واخلی لیاقت یې رزالت شي
کم سیالو نه کم سیال شی چې سیالان شي کوڅه ډب

خالصه خیر دې غواړه چې شپې ورځې دې ترخیږي
چې غله شي مجاهد او رهبران شي کوڅه ډب

